

د ۱۳۹۲ش کال لومړۍ ګڼه

(حمل - ثور)

# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

پښتو اکبرنامه

فرهنګي مسئولیت

پښتانه اصلاً څوک دي؟

نوبل جایزه وړونکي ادیبان

د استاد داوي ورځپاڼه لیکنه



ښادروان ادیب عبدالهادي داوی

اروابناد استاد بېنوا

# دپوهني ډېوه

د ناپوهۍ په توره تیاره کي پروت وم.
د ړندو په شان تېرېدم.
نه پر مخ تلای سوم، نه مي شا ته قدم اخیستلای سو.
د ناپوهۍ ظلمت مي حواس راپرېشانه کړي وو، پر سترګو مي د جهالت توره پرده خپره وه او غوږونه مي د نادانۍ په پنبه ټپ سوي وو.
ژبه مي د بې علمۍ جادو بنده کړې وه، هیڅ نه پوهېدم چي څه وکړم؟ څه ووایم او څه واورم؟
زړه مي بې نظمه توپونه وهل، په دماغ کي مي نامنظمه او پرېشانه افکار ګرزېدل راګرزېدل، د ډېرو خطرناکو اندېښنو په غېږ کي راګیر سوی وم او د نجات لاره راته نه وه معلومه، د ډېرو معماوو سره مخامخ وم چي د یوې حل هم نه راتی!
هر څومره چي زما بینایي زیاتېدله هغومره د تیارې او ظلمت ضخامت لوئېده، هر څومره چي به ما لاس او پښې غورځول په هم هغه اندازه د مشکلاتو په دام کي راګیرېدلم.
کله کله به مي له ډېره اضطرابه یوه هولناکه چیغه له خولې ووتله.
نژدې وو چي د ژوند له ښکلو مناظرو څخه بې نصیبه او محروم پاته سم چي ته راغلې.
هو! ته راغلې اوستا په لاس کي د پوهني ډېوه وه.
تا زما تیاره کور، زما تیاره دماغ او زما تیاره ژوند را روښانه کړ او د پوهني د رڼا په برکت دي زه د ناپوهۍ، جهل او بې علمۍ له خطرناکي تیارې څخه خلاص کړم.
هو! دا ټول ستا د پوهني د ډېوې برکت وو.

بسم الله الرحمن الرحیم





# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله


د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره

د ۱۳۹۲ش کال لومړۍ ګڼه (وری - غویی)

پرله پسې ۵۶ مه ګڼه



مؤسس

محمدولي زلمی

سرپرست چلوونکی

مطیع الله روهیال

کتنپلاوی

ډاکټر عبدالرازق پالوال

څېړندوی شېرشاه رشاد

حیات الله رفیقي

عبدالکریم طالب

فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري

پردېس روهیال


**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندې کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰ - کلداري

**کلني ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۲۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره


پته

علامه حبیبي واټ

د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

د کندهار مجلې دفتر

ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست


| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. | فرهنګي مسئولیت/ د اداري یادښت ................. | ۳ | اداره |
| ۲. | ښادروان ادیب عبدالهادي داوی ..................... | ۴ | ډاکټر عبدالرازق پالوال |
| ۳. | د استاد داوي ورځپاڼه لیکنه .......................... | ۱۹ | استاد حبیب الله رفیع |
| ۴. | د تاریخي افغانستان د ولسونو په اړه د استاد داوي .... | ۲۳ | څېړندوی عبدالغفور لېوال |
| ۵. | پښتو اکبرنامه .................................... | ۲۷ | استاد محمد معصوم هوتک |
| ۶. | پښتو ادبي انجمن د تاریخ په څپو کي ................. | ۳۴ | څېړندوی شېرشاه رشاد |
| ۷. | هنر او ادب ........................................ | ۳۹ | بېلابېل شاعران |
| ۸. | د قاموس پوهني په رڼا کي د ښاغلي یوسفزي پر ...... | ۴۳ | هارون خپل شعشعي |
| ۹. | پښتنانه اصلاً څوک دي .............................. | ۵۴ | ډاکټر نثار احمد صمد |
| ۱۰. | نوبل جایزه وړونکي ادیبان .......................... | ۶۳ | ژ/ نثار احمد آریا |
| ۱۱. | په کاکړیو غاړو کي د شخصیت ورکولو موضوع ....... | ۶۹ | محب الله ترابي |
| ۱۲. | لغمان د تاریخ په هنداره کي .......................... | ۷۳ | څېړندوی رفیع الله نیازی |


**یادونه:**

**د دې ګڼي لومړی درې مقالې په هغه دوې ورځني سیمینار کي اورول سوي دي، چي په کابل کي د مشهور مشروطیت غوښتونکي، ډیپلوماټ، سیاست پوه، لیکوال او شاعر ارواښاد استاد عبدالهادي داوي پرېشان د دېرشم تلین په اړه د ۱۳۹۱ش کال د کب د میاشتي پر ۲۷ – ۲۸ تاریخ جوړ سوی**

# فرهنګي مسئوليت

د اولسونو بقا او پايښت د خپلو فرهنګي چارو په سمبالښت پوري تړلی دئ. د فرهنګ کلمه په پراخ مفهوم د يوه اولس ټول معنويات په غېږ کي نيسي. خو که دغه کلمه لږ و ډېر په ځانګړې معنا سره تعبير کو، د خپلي ژبي، خپل تاريخ، خپل دود و دستور او خپلو عنعناتو ساتلو په مفهوم ئې وکاروو، نو د هري ټولني فرد فرد له دغه فرهنګي مسئوليته اوږې سپکولای نه سي.

که څه هم زموږ په دولتي جوړښت کي د دغو چارو له پاره يوه مشخصه اداره د اطلاعاتو او فرهنګ په نامه موجوده ده، خو دا د دې معنا نه لري چي دغه اداره دي په يوازي سر د دغو ټولو چارو تر عهده ووزي. که خدای مه کړه د دغي اداري سره د ټولني نور اقشار په ځانګړې توګه ليکوالان، شاعران او د نظر خاوندان تر خپله وسه او طاقته کومک او مرسته و نه کړي، معنا به ئې دا وي چي د فرهنګ او معنوياتو خوا مو د وداني پر ځای د ورانۍ خوا ته روانه ده.

کندهار مجله د کندهار د تاريخ، ادب، هنر او کلتوري موضوعاتو د پاللو، ساتلو او ګرمولو يو پخواني او مستحکم سنګر دئ. د دغه فرهنګي سنګر د لا ګرمولو، ساتلو او پاللو له پاره موږ د خپلو ليکوالو، شاعرانو، د نظر خاوندانو او فرهنګيانو همکاری او کومک ته ضرورت لرو. د دغه درانه مسئوليت (فرهنګي مسئوليت) د تر سره کولو له پاره هر ليکوال، شاعر او د نظر خاوند مکلف دئ چي د خپلي ژبي، تاريخ، ادب او فرهنګ ساتلو له پاره د اسلافو پر پلونو قدم کښېږدي او د خلف الصدق په شکل خپل ورسپارل سوی رسالت تر سره کړي.

له تېرو څو مياشتو راهيسي کندهار مجله چاپ سوې نه د،، اصلي علت ئې زموږ د ليکوالو او پوهانو نه همکاري ده، خو په دې برخه کي د دې اداري د ځينو تخنيکي معاذيرو څخه هم سترګي پټولای نه سو. د کندهار مجلې اداره غواړي تر دې وروسته په هرو دوو مياشتو کي په منظم ډول خپلو نشراتو ته دوام ورکړي، د دغه دوام تضمين زموږ د ليکوالو او پوهانو په همکاري پوري تړلی دئ.

کندهار مجله که څه هم په دولتي چوکاټ کي فعاليت لري، خو په هيڅ وجه بايد دا خبره له ياده و نه باسو چي دغه مجله د دغي سيمي د تاريخ، ادب، فرهنګ او کلتور د پيکه اړخونو د روښانولو ډېر درون مسئوليت لري، چي تر اوسه پوري ئې دغه درون مسئوليت د خپلو پوهانو او ليکوالو په همکاري په خورا ښه ډول تر سره کړی دئ. تر دې وروسته به هم د دغو ښاغلو په همت دغه درانه بار ته اوږې ورکوي او په پوره امانتداري به ئې تر خپل سرمنزله رسوي.

په درنښت



داکټر عبدالرازق پالوال

# ښادروان اديب عبدالهادي داوی

مېړني دي چې يادېږي
په سندرو هـم په وير
(خوشحال خټک)

دغه ليکنه د ۱۳۹۱هـ ش کال د کب پر ۲۸ باندي په هغه غونډه کښي ولوستله سوه چي د ښادروان اديب عبدالهادي داوي د دېرشم تلين په مناسبت د کابل په اينترکانتيننټل هوټل کښي د کب پر ۲۷ – ۲۸ باندي جوړه سوې وه.

زه به لومړی د کندهار د لړنيو ګوتشمېرو روښانيانو او ليکوالانو په استازيتوب د ښادروان استاد، سياستوال اديب او ليکوال داوي د شخصيت په اړوند څه درته ولولم او بيا به د داهو د تاريخي قبيلې د نامه، سيمي او قبيلوي ښاخونو په اړوند خپله تحقيقي ليکنه ستاسي و درانه حضور ته وړاندي کم.

د استاد عبدالهادي داوي پلار مولوي عبدالاحد داوی په کندهار ښار کښي يو مشهور حاذق طبيب و. دی د خپل زمان د شاه امير عبدالرحمن خان له خوا څخه و کابل ته وروغوښتل سو او هورې د شاهي کورنۍ او نورو طبيب و. نو ښاغلی استاد عبدالهادي داویٔ هم په کابل کښي لوی سویٔ او هم ئې هورې زدکړې کړي وې. ده د خپلي زمانې او اجتماعي محيط له سياسي، علمي او دوديزو ناخوالو سره د نظم او نثر د ليکنو په وسيله سره مبارزه کړې وه او خود به هم د کابل په چاپېريال کښي اغېزمنه ثابته سوې وه. دی

چې د علمي او ادبي آزادۍ غوښتنې مبارز ؤ، په دغه لار کښې ئې خپله آزادي هم کلونه – کلونه بایللې وه چې دوه واري ئې اوږد بند ګاللئ ؤ.

دا چې هغه زمان مطبوعاتي امکانات محدود ول، راډیو او تلویزیون نه ول، نو د دوی افکار یوازې په کابل پوري محدود ول. خو اوس به ګوندې د دوی د نمسي ښاغلي عبدالغفار داوي په مهرانۍ او برکت سره د افغانستان او ګاونډي پښتونخوا تر ښارونو او کلو پورې ورسېږي.

وايي: "چې خان يې، په ياران يې، چې ياران نه يې، توري خاورې د بيابان يې".

هغه عالم، اديب او ليکوال چې د خپلې ټولنې ويښوول او پوهول غواړي په ټولنه کښې داسې مثال لري لکه څراغ په توره خونه کښې. که دغه څراغ مړ وي يا نه وي، په خونه کښې به توره تياره وي. دغسې هم که يو عالم، اديب او ليکوال لکه ښادروان عبدالهادي داوي غوندې شخصيت په ټولنه کښې نه وي، هغه ټولنه به هم وګړې او جاهله وي. په دغسې ټولنه کښې به د جهالت توره تياره وي. نو ښادروان عبدالهادي داوئ د خپلې ټولنې علمي او ادبي څراغ ؤ چې خود به ئې و ډېرو لار ورکو .ته د پوهې روښنايي او فيض وررسېدلې وي. ډېر که څه هم له موږ سره نور نشته، خو ياد، آثار او افکار دي ئې زموږ د لارې څراغونه وي او د دغو په وسيله سره به ئې ياد او نوم هم ژوندی وي.

پالوال

# د داهستان داهوي

ښايي په کندهار کښې به نور څوک هم د داهو په نامه سره وي، خو دا چې زه په کندهار کښې ډېر کلونه اوسېدلئ نه يم، نو نور څوک په دغه نامه سره نه پېژنم. خو ښايي خود به نور هم وي.

د کندهار ښار او ښارسپاه تر منځ يوه سپينه ګومبته ولاړه ده. دغه د اخوندصاحب زيارت بلل کيږي چې نوم ئې ميا نورمحمد اخوند ؤ. له پښين يا شاوخوا څخه ئې داهوي و زيارت ته ورځې او دوی ئې خپل نيکه بولي.

داسې ايسي لکه دغه داهوي چې دي نن يوه قبيله نه وي، بل لا ښايي چې يو خېل دي وي. خو په پخوا کښې به دغه يوه قبيله څه، بل لا ښايي يو لوی قوم دي ؤ او له سکيثو Skyco (ساکزو) سره دي ئې سيالي کوله. همدغسې ساکزي يا سکيوثي پخوا يو لوی قوم ؤ، خو نن يوه کوچنۍ قبيله ځنې جوړه سوې ده. د دغې تنبدنې عامل به ئې ښايي د دوی جهالت او سياسي شعور نه لرل ول. د دغه حکم ثبوت څه دئ؟ ثبوت ئې دا دئ چې دوی خپل تاريخ کښلئ نه دئ، او که به ئې نه ګانه کښلئ هم وي، نو چيري دئ؟ هغه پاته سوئ هم نه دئ.

سکيثو يا ساکزو ډېر بادشاهان لرل، خو و موږ ته ئې د يوه نوم هم راپاته نه دئ، خو د دوو ښځو شهيو نومونه ئې راپاته دي. دغه نومونه هم ځکه راپاته دي چې زرمينې د پرثووانو (پښتنو) له بادشاه، مرمر سره واده وکړ. د دوی او د مېديا يا مېسا تر منځ جنګ وسو. په جنګ کښې د مدای چې شاهي ښار ئې اګمتانا (اوسنی همدان) ؤ، شاهپور فريدون په جنګ کښې ونيول سو. مرمر غوښتل چې فريدون ووژني، خو زرمينې مخالفت ورسره وکړ. خو دا چې مرمر له خپله ويلاړه څخه نه اووښتئ. نو زرمينې خپل مېړه ، مرمر وواژه، او فريدون ئې نه يوازې له مرګه څخه وژغورئ بل لا آزاد ئې هم کړ.

د سکيثو يا ساکزو بله شهو توميره Tomira نومېده. کايروس د دې زوی په چل او فريب سره ورووا ژه. توميرې ئې هم په غچ کښې کايروس وواژه.

کله چې لوی سکندر د هخامنشيانو بادشاهي ورونړوله، هغه پرڅوانه چې د داريوش په لښکر او سپاه کښې ول، هغوی د لوی سکندر په سپاه کښې شامل سول. د لوی سکندر تر مسموم کولو وروسته د پارس بادشاهي وپرڅووانو ته ورپاته سوه چې سپاه سالار او بيا پادشاه ئې ځان پرڅه دارای بللئ ؤ. د دہ پر مسکوکاتو يا ايکيو باندي دہ خپل قوم يا قبيله په دوو تورو، "ت ه" سره ياده کړې ده. دغه دوه توري هم تها هم توهي، هم تاهي، تاهيه لوستل کېدای سي.

دغه پرڅه دارای چې په پارس کښې ئې بادشاهي جوړه کړې وه، او شاهي ښار ئې ستخر ؤ. د دہ زوی ارڅک نومېدئ چې پرڅيا يا پرڅووا ئې له مکدونيانو څخه ونيوله. د ارڅک له زوی پرياپت څخه د انيتوخوس پرڅيا بيرته ونيوله. د دغه ارڅک نمسی هم ارڅک نومېدئ چې پرڅيا ئې بيرته له انيتوخوس څخه ونيوله. تر دہ وروسته د دوی ټولو دوپنځوس شاهانو ځانونه ارڅک بللي دي او د اڅکزو قبيله ځني راټوکېدلې ده. تر دوهم ارڅک دمخه دوی تاهي يا تها يا توهي يا بل داسي څه نومېدل. دا ځکه چې د دوی مخکښی سرغنه پرڅه دارای پر خپلو ايکيو باندي د خپلې قبيلې نوم په ارامايک تورو سره "ت ه" کښلئ دئ چې توهي يا تهای يا تاهي غوندي لوستل کېدای سي. ارامايک ليک حرکي توري نه لرل.

سربېره پر اڅکزو باندي ترين هم توهي آرين دي چې مانا ئې رودي توهي ده. نو ترين د "توهي آرين" کورلټ يا خلص شکل دئ.

دغه شان نو توخي هم توهي دي، او توخاريان هم توخي آرين يا رودي توخي دي. آريا د هغه زمان په ژبې سره و رادہ ته ويل کېدل، او آريانا د سيندونو هيواد مفهوم اداء کاوه.

زه به بيرته د قبايليت و بدوديو ته وروګرځم څو د څرګندوني په توګه مي ئې د داهو د قبيلې ځيني پاته بوجړانګي او تګړې سره پټلپس کړي وي.

دغه داهوي، تاهي، يا توهي يوه خورا لويه قبيله وه چې په باختريا، سغديانا، مارګيانا، آريا، پرڅيانا، داهستان، او نورو شاوخوا سيمو کښې خپره وه. نسبت نورو اقوامو او قبايلو و نومونو ته د داهو نوم په کلاسيک آثارو کښې خورا راز راز کښل سوئ دئ. ځيني زبده شکلونه ئې په داسي ډول سره دي: دهای Dahai، ده آی Daai، دی آی Daae، داهي Dahi، داؤوی Daoi، داهوي Dahoi او دهياوه Dahyava دي. دوی په خپله پر خپلو ايکيو (مسکوکاتو) باندي دغه نوم صرف (ت ه) کښلئ دئ. ای تاهي يا توهي، او هيواد ئې هم په رووستو کښې داهستان باله کېدئ.

دغه (توهي) يا (ده آی) يوازي د کسپين بحيرې په نژدې ختيځه برخه پوري محدود نه ول. دوی په واقعيت کښې د باختريانا او سهيلي سغديانا تر پايه پوري ای ختيځو برخو پوري خپرښت لاره. دوی آن د ياخښارتا (سيحون) و ختيځي خوا ته لا ځايان ول.

له دغو توهو څخه بيسوس، سپيتامن، او هم لوی سکندر د خپلو لښکرونو له پاره ملاتړ ټول کړي ول (اريانوس، درېيم ۲۸، ۱۰، پنځم ۱۲، ۲). تر دوی دمخه لا آن داريوش په خپل لښکر کښې (توهي) جنګياليان لرل (کورتيوس، اووم، ۱۵، آريانوس، درېيم ۱۱،

۳، ۲۸، ۸) او هم خشيارشا (خښرخښ) xerxes داسي (کوک ۱۹۸۵: ۲۳۹).

سترابون (يوولسم ۹، ۲) و موږ ته يوه قبيله د دهای Daae په توګه رايادة کړې ده. دء دوی اپارني Aparnian بللي دي چي له ارڅکو او ساکزو Skyoian سره ئې د اوخوس Oxos رادء پر غاړو باندي ژوند کاوء. دوی پر پرثيا باندي بريد وکړ او اشغال ئې کړه.

ګيرشمن (۱۹۵۴: ۲۴۳) د داهو په اړوند داسي کښلي دي: د پرثنو په باره کښي موږ داسي معلومات لرو چي دوی په پارني ټبر پوري اړه لرله. دغو بيا د دهای Dahae يو ښاخ جوړاوء. وروستنيان د سکيثي اقوامو يو لوی ښاخ دئ کوم چي د مرکزي اسيا په بېديائي سيمو کښي د کسپين او ارل Aral بحيرو تر منځ کوچي ژوند لارء. دوی جنګياليان او سپارء ول و کومو ته چي د پخوانيو ليکوالانو په استناد سره په جنګ کښي مړينه وياړ او فوق العاده خوښي وه. خو په طبيعي عواملو سره ورته مرګ شرم او بې ننګي وه. وژل سوي په سندرو او بدلو کښي ستايل کېدل.

وړاندني عبارت و ما ته د سرغنه خوشحال خټک دغه پسې بيت را په يادوي چي د زوي د مړيني په اړوند ئې ويلئ دئ:

کشکي ځوان د پښتانه په ننګ کښي مړ وای
نه چي ګور لره روان سو له تلتکه

دالبنګ (۱۹۵۷ لومړی ۶۰۷) کښلي دي چي داهوي اصلاً د سيحون په بېديا کښي اوسېدل، او وروسته ئې د کسپين بحيرې و شمال ته لېږد کړئ دئ. "دوی د پلو لښکريانو غوندي خو خاصتاً د سپرو غشو ويشتونکو په شان ئې په پارسي او هم په مکدوني لښکرونو کښي لوړ شهرت لارء".

التهايم (۱۹۵۳: ۲۱۰) د دوی په اړوند داسي کښلي دي چي د شمالي خوارزميا سرحدي غرونه د ګرځنده دښمن په مخ کښي لکه تر نورو تکړه د دهای قوم چي دئ، د پرثيانا او هيرکانيې سپرونه ګرځېدلي دي.

هغه داهي يا توهي چي په داهستان کښي اوسېدل دري قبيلې ئې لرلې. د سترابون (يوولسم ۸، ۲) په استناد سره دغه دري قبيلې عبارت وې له اپارني Aparni، له خنثيوي Xanoioi او له پيسوري Pessuri څخه.

"د دوی له جملې څخه اپارني و هيرکانيې ته څرمه اوسېږي، او هم د کسپين بحيرې پر هغې څنډې باندي چي و هيرکانيې ته ورنژدې ده. خو هغه نوري دوې قبيلې بيا تر هغې سيمي پوري خپرې دي کومه چي له آريا سره موازي غزېدلې ده".

آريا عبارت له هرات يا هريرود څخه ده. مارکوارت (۱۹۳۸: ۶) کاږي چي (سيند) د (داهو) او (آريايانو) [هراتيانو] تر منځ وېش جوړاوء. دی دا هم پسي کاږي چي ګوتشميد دغه (سيند) په اوخوس Oxos – تيجن Tejen سره پېژني (دغه د هريرود د کښتنۍ برخي د لوېديځي خوا ښاخ دئ). د داهو بېديا له دغه ځايه پيل کېږي.

سيند په اوسنۍ پښتو کښي هم خاص او عام نوم دئ چي و هر رادء ته ويل کيږي. خو سترابون په دغه مورد کښي د خاص نامه په توګه کارولئ دئ چي د هريرود کښتنۍ يا وروستنۍ برخه ښووي. د رادء هغه ښاخ چي له لوېديځي خوا څخه وربهېدی او په ګډېږي تېجن Tejen بلل کېږي.

له وړاندنيو بيانونو څخه موږ اوس داسي پوهېږو چي د (داهو) قبيله د سيحون له ها خوا څخه بياد کسپين بحيرې تر ختيځي غاړي پوري خپره وه. اوس د داهو تقريبي پخوانۍ سيمه رامعلومه سوه. نو بله داسي

پوښتنه راپیدا کېږي چې آیا دوی هر کله دلته اوسېدل، او که کله چیرې له بلي سیمي څخه ورلېږدېدلي ول؟ په دغه اړوند هم داسي بیانونه سته لکه د سکیڅو په باره کښې چې سته.

خوکولیج (۱۹۶۷: ۲۵) په داسي نظر دئ چې پارنۍ Parni د داهو د اتحادیې یوه قبیله وه. دغه داسي ایسي چې دا به و پرثیا ته او هم به ښایي و باختریا ته هغه زمان ورلېږدېدلې وه کله چې په سهیلي روسیه کښې ښورښ او پاڅون پېښ سوی ؤ. نو وړاندنۍ پېښه (واقعه) له دغې سره سمه او د لوی سکندر تر مړیني وروسته پېښه سوې ده.

د وړاندني نظر پر خلاف شیپمن (۱۹۸۰: ۱۶) داسي کاږي چې خلوپین I.N.Xlopin په تېجن سره د اوخوس Oxos پېژندني په باره کښې موجوده نظرونه کټلي او په ښو زبده دلایلو سره ئې دا ثابته کړې ده چې نوموړې پېژندنه غلطه ده. د دغې پر ځای باندي دۀ دا په باوري توګه سره ښوولې ده چې اوخوس Oxos پر اوسني اتریک Atrek باندي دلالت کوي. دغه مانا دا چې پارني پر هغې سیمي باندي ځایان سوي ول چیرې چې داهوي ځایان ول. دغه هیرکاینه او د اتریک شمالي بېدیا وه. خلوپین تر دغه لا هم یو ګام وړاندې ځي. داسي چې دی هغه نظر چې وایي داهي او له دوی سره پارني د جیحون او سیحون له میتاني یا اوکسوس Oxus او یا خښارتس Jaxartes له میزوپوتامیا Mesopotania څخه و وروستني سیمي (داهستان) ته ورلېږدېدلي دي، یو مخیزه ور ردوي، او په دغه سره د ستراېون و بیان ته ثقت وربخښي کم چې وایي داهای او پارني همېشه د اوخوس (اتریک) پر غاړو اوسېدلي دي.

دا چې ولي باید د اوخوس سیند هم اتریک وي، خلوپین کاږي چې ددغه ځای خلک ئې اوس هم اوخوس بولي. ای دغه سیند په دوو نومونو سره یادېږي اوخوس لو اتریک.

یئه، دغه دوه لنډ رودونه دي چې یو ئې د هیرکانیې د غرونو له ښي خوا څخه اوخوس و ختیځ لور ته بهېږي او په هریرود ګډېږي. پر همدغې برابرۍ باندي د دغې غرنۍ سلسلې له کیڼې خوا څخه بل اتریک رود د استاوېنه په دره کښې مخ پر لوېدیځ لور باندي بهېږي چې و کسپین بحیرې ته ورتوییږي.

دا چې خلوپین وایي داهي یا دهای د یوروسیا Eurosia (اروپا – اسیا) له بېدیائې میتاني څخه د اوخوس (اتریک) و غاړو ته لېږدېدلي نه دي مقصد ئې ښایي دغه وروستنۍ زمانه وي کله چې دوی پر هیرکانیه، پرثیا، او مارګیانا باندي غوټې وهي. د دۀ نتیجه سمه ده لکه څنګه چې شیپمن هم ورسره منلې ده. رشتیا هم د داهو او پارنیانو لېږد و نوموړې سیمي ته وروستنی نه، خو پخوانی دئ. په سیمه کښې د دوی ثقافتي آثار زرونه کلونه نور هم د وړاندې ځي.

بوؤتاس BoUtas (۱۹۸۴: ۲۶۵) د اوستا د پنځو توکومونو نومونه یاد کړي دي چې یو ئې داهي Dahi هم دئ. نور څلور توکومه ئې عبارت دي له آیریه Airya، ساینو Sainu، توریه Turiya او سریمه Sairima څخه دي.

په دغو پنځو توکومونو کښې آیریه به د هرات اوسېدونکي ول. توریه بې له شپیانه څخه توران یا لا تورانیان دي چې پښتانه دغه نوم و یاغیانو ته ورکوي. دا که دوی د حکومت مخالفان وي، یا د جال دود څخه سرغړونه کوي، یا د مره کې پرېکړه نه مني، یا له دینه څخه اووښتي وي، خلک ئې اصلي

کسان توران او مربوط کسان ئې تورانیان بولي. سریمه به خود سرماتیان ول چي د میمنې د شمال په حدودو کښي اوسېدل چي التهایم (۱۹۵۳: ۲۱۰) داسي پېژندلي دي. څنګه چي دوی پر آریا (هرات) او مارګیانا (مروه) باندي بریدونه کړي وه او هورې ئې وراني ویجاړي پیښي کړي وې، نو سړی داسي پوهېدای سي چي دوی به ښایي د داهو (توهو) یوه پښې یا څانګه وه. دا ځکه چي په دغه زمان کښي دغه قوم پر دغي سیمي باندي خپور او چاپېر ؤ. د اوستا په پورتني لړ نومونو کښي د داهو Dahu نوم هم یاد کړه سوئ دئ چي بوږتاس د نومړو نورو غوندي د یوه توکوم په توګه ګڼلئ دئ. په واقعیت کښي له دغي لړی څخه یو لا هم توکومیز نوم نه دئ، خو ځیني ئې د قبایلو نومونه دي چي توهي یا داهي هم دغسي یوه لویه قبیله وه.

هرځفلد (۱۹۴۷ دوهم ۷۰۹) د دغه نامه د اداینې پوره درک کړئ دئ چي په دغه اړوند ئې داسي کښلي دي: "داهه Daha یو مجموعي نوم نه، خو قبیلوي نوم دئ. د خشیارشاه د دایۊ په کتیبه کښي (۱، ۲۶) دوی د داهه Daha، په ایلامي کښي د (ته) هه (ta) ha، په اکادي ژبه کښي د ده آن Daan په توګه یاد کړل سوي دي. د پرسپولیس Persapolis پر ډبرینو دېوالونو باندي چي د جنګې وړاندي کوونکو انځور ځرګندوي، دوی [داهي] ئې په هیڅ توګه له پرثوه [پرثووانو، پرثیایانو] څخه په بل بېل ځېر سره ښوولي نه دي".

ګوتشمید (۱۸۸۸: ۶۴، ۶۷) کاږي چي د وای Wei سیند (آمو Oxus) په سهېل کښي تاهیه Ta-hia واقع دئ چي زندي Zand شکل ئې داهویو Dahuyu او هخامنشي ئې داهیاو Dahau دئ. دی دغه د وطن په توګه پېژني. دغه هغه نوم دئ چي کلاسیک لیکوالانو ثبت کړی دئ. دغه نوم په خپلو تولو شکلي یادونو او مواردو کښي پر یوې قبیلې باندي اطلاق کېږي. خو یوازي د چینایي منابعو تاهسیه Ta – hsia د وطن په توګه و باختریا ته ویل کېږي. او بل د (ته های Tahay) په توګه په اسوریائي کتیبو کښي هم د وطن (هیواد) مصداق لري.

د (ته های) Tahae د نامه ډېره پخوانۍ یادونه چي زه ځني آګاه یم د آسوریانو بادشاه سیناخریب Senaxerib (۷۰۴ – ۶۸۱ ق م) کړې ده. دا هم د چینایانو غوندي دغه نوم د کرښوریا هیواد په توګه کارولئ دئ. نه د خلګو یا قبیلې په مفهوم سره. په دغه اړوند ئې د بادشاه نوم هم یاد کړئ دئ او داسي ئې کښلي دي: "ما د مانییای Maniae د دایي Daie هیواد د ؤکو Ukku د ښار بادشاه چي سرغاړئ (یاغي) سوئ ؤ، پر ضد باندي لښکرکښي وکړه او پر داسو نریو، له خواریو ډکو لارو باندي چي پانېونو او ګړنګونو لرونکو غرونو په اوږدو غزېدلې وې، او تر ما دمخه بل هیڅ بادشاه پر دغو لارو باندي سفر کړئ نه ؤ، زه پر ولاړم" (لکن بیل ۱۹۲۷ دوهم ۱۲۲ شم ۲۴۵).

خشایارشاه یا خښرخښ Xerxes (۴۸۶ – ۴۶۵ ق م) تر یادونې وروسته هیرودوت د ۴۸۵ ق م په شاوخوا کښي د (ده آی) یادونه کوي. له کلاسیک لیکوالانو څخه ښایي وروستنی شخص کورتیوس Curtius وي چي (ده آی) نوم ئې د ۷۰ م په شاوخوا کښي ثبت کړئ دئ. تر دغو وروسته پهلوي متون د (ته هي) یادونه کوي. دغه دا مانا نه لري چي تر سیناخریب دمخه او تر

پهلوي متونو وروسته نو د (تاهي) يا (توهو)
قبيلې ستوالئ نه لاره. اوس ئې لا هم لري، خو
تنبدلي دي. دغه قبيله په خپل اصلي نامه سره
او هم په بل لهجوي نامه سره اوس هم سته.
دغه قبيله په خپل تاريخي ثبت سوي نامه سره
نن ورځ داهوي Dahwi بلل کېږي. خو شمېر
به ئې تر هغيو ډېر لږ وي چې په لهجوي نامه
سره يادېږي يا ياد سوي دي.

د دوی وطن يا هيواد چې داهيستان
نومېدئ، او په روسي ژبه کښي چې هې /ه/
په ګاف /ګ/ سره ويله کېږي نو ئې داهستان د
داګستان په توګه ويلئ او کښلئ دئ. خو په
اوس کښي بيا هغه روسي داګستان د
داغستان په توګه ويل کېږي، چې د داهستان
اړولي شکلونه دي.

د هندوکش سلسلې غرونو شمال
لوېديځ ژبې هی /ه/ په شمال ختيځ کښي په
خې /خ/ سره ويل کيږي لکه (هور) چې "نمر"
او يا "اور" ته ويل کېدل، په (خور) يا
(خورشيد) (د نمر رڼا) سره ويل کيږي.
دغسي اړوني په اوم (هوم) – خام : هګينه –
خاګينه، بهره – برخه، چينايي هان – خان ويل
کېږي. دغه راز هم داهوي يا تهاى يا توهي د
هندوکش په شمال ختيځ کښي په توخي سره
ويل سوئ او د (توخارستان) يا (توخاريان) د
(توخي آرين) جمع شکل دئ. په پخوا کښي
(آريا) و رادء او سيند ته ويل کېدل چې نو
توخاريان مانا رودي توخي. دغسي هم له
(توهي آرين) رودي توهو څخه په لنډون سره
(ترين) جوړ کړه سوئ دئ. نو توهاريان په
لنډون سره ترينان کيږي. څنګه چې نوم ئې له
"توهي آرين" سره اړه لري نو به هغه زمان دوی
د هرات يا لا د هريرود ناوې او سېدونکي ول.

پوري (۱۹۷۹: ۱۸۵) کښلي دي چې:
"بګچي Bagchi داسي پوهېدلئ دئ چې د
هان Han د کلني دفتر تاهيه Tahia په
پخوانۍ زمانه کښي (دمه (ت) که D'a(t)ga
غوندي تلفظ کېدئ او دغه په ټولو امکاناتو
سره د دوګار Dogar يا توخار Tuxar ځای
ښووي چې په پنځمه پېړۍ کښي د (تو – هو –
لو To – ho – lo يا تو – خو – لو -Tu-xua
lo په توګه ليدل کيږي. د دغه هيواد بادشاه و
چين ته سفيران لېږل". دغه تو – هو لو يا تو –
خو – لو عبارت له توخارو يا تخار څخه دئ.
دغه توخي آرين مانا رودي توخي. توخي د
قبيلې نوم او توخار يا تخار ئې وطن دئ. دغه
مانا (رودي توخي) له دغه نامه څخه ئې
توخارستان او تخارستان هم جوړ سوي دي.

و دغه ته ورته بل نوم باختريا دئ چې
مانا بخدي – آريا، يا رودي بخدي. په
مخامختيا کښي ئې (بلخ باميک) دئ چې
مانا لوړ بلخ، دغسي هم خروښتي، د سمي
هواري خروښتيان او غرغوښتي د غرو
خروښتي لنډون دئ.

لنډه ئې دا چې داهوي، دهاى، تهاى،
توهي او توخي دېلابېلو زمانو او ټولنو
لهجوي لغوي شکلونه دي.

دا چې په سري سره سکيثي څوک ول
سترابون (يوولسم ۲،۹) و موږ ته وايي چې
دوی په سکيثو کښي ده آی (داهي) ول، او په
داهو (توهو) کښي دوی پارني (اپارني) ول
(۷ مخ). دغه پارني پر دې برياليان سول څو په
پرثيا کښي د مکدونيانو Makedunian
دولتي جنډۍ (درفش) نسکوره کړي او د خپل
تورکاوه (شاهانه) جنډۍ پر ځای درې رنګه
ژړه، سره او چونيا معاوضه جنډۍ پورته کړي.
دغه پر يونانيانو (مکدونيانو) باندي تر
برياليتوب وروسته د دوی د ياغيتوب توره
جنډۍ په درې رنګه شاهي جنډۍ سره واوښته.

پتولمايوس کښلي دي چې پارني Parnoi او ده آی Daai دواړه ولسونه په مارګيانا کښې اوسېدل (مک ګرينډل ۱۹۲۷: ۲۶۲).

پتولمايوس Ptolemaius (لسم ۲) د دوی ځای د نورو خلګو په څنګ کښې داسي ټاکلئ دي: "د دغه کرښور [مارګيانا] په هغه برخه کښې چې و آمو Oxus ته نژدې ده. دربيکای Darbikai اوسېږي، او تر دوی کښته (و سهېل ته) مس ساګيتای Massagetai ستانه دي. د وروستنيو و شاته پارنوی Parnoi او ده آی Daai اوسېږي".

سترابون (يوولسم ۱۰۷) د دغو اپارني Aparni او ده آی Daae وطن د کسپين بحيرې (ختيځه) خوا ښووي چې وروسته د دوی په نامه سره داهستان بلله سوې ده. کوليج (۱۹۶۷: ۲۵) کاږي چې پارني د لوی سکندر تر مړيني وروسته د پرثيا او هم ښايي د باختريا و سيمو ته ورکوچېدلي ول، او دغه هم هغه زمان چې د سهيلي روسيې د اقوامو تر منځ ښورښ سوئ ؤ. کله چې دوی په دغو سيمو کښې ځان ټينګ کړئ ؤ، نو ئې نيم کوچې ژوند لاړء. بالاخره ئې ژبه هم د ځايي خلګو له ژبې سره ګډه سوه. د کوليج له بيانه څخه دغه تطابق يوه اوږده عمليه اېسېږي. خو شيپمن (۱۹۸۰: ۱۸) کاږي چې دوی به ښايي د پرثيا او هيرکانيا له نيوني سره سم پرثوانه بلل سوي وي.

ؤولسکي (۱۹۶۹: ۲۰۵-۲۰۸) له خپلو څېړنو څخه و داسي نتيجې ته رسېدلئ دئ چې وايي کله کله ديموداماس Demodamas د سلوکس او ارنتيوخوس دواړو جنرال ؤ. دی په سغديانه کښې په فتوحاتو بوخت ؤ. لا هغه زمان داهي Dahi و دغي د سيحون او جيحون تر منځ سيمي ته لا ورلېږدېدلي نه ول. دا ځکه چې دء يا نورو ئې يادونه کړې نه ده. کله چې په ۱ - ۲۸۲ ق م کښې سيلوکس نيکاتور مړ سوئ ؤ، په دغه زمانه کښې داهي د سيحون او جيحون و ميتاني (سغديانا) ته ورکوچېدلي دي او هم په دغه زمان کښې پارني له خپلو داهو قوميانو څخه ځان بېلوي، مخ پر وړاندي د سهېل و خوا ته درومي او د اوخوس سيند پر غاړو باندي اړوي، او هم پر هغو بېدياوو باندي چې و ويران کړل سوو ښارونو ته څرمه واقع دي. "د دې له پاره څو دغه نتيجه مو تثبيت کړې وي دا بس ده (کفايت کوي) چې د بريدونو بل دغسي (ورته) مثال ته مو حواله ورکړې وي، کم چې تر دغه دېرش کاله وروسته وقوع موندلې ده. دغو پارنيانو د ارځک تر مشرتابه لاندي د اوخوس سيند غاړې پرېښوولې او د هيرکانيې - پرثيا پر ساتراپي باندي ئې بريد وروور. نيسايا ئې په ۲۵۰ ق م کښې، پرثيا ئې په ۲۳۸ ق م کښې، او هيرکانيه ئې په ۲۳۵ ق م کښې ونيوله.

هرڅفلد (۱۹۳۲: ۳۶) کښلي دي چې: "د ساکو يو خېل، پارني يا اپارني، چې په داهو پوري ئې اړه لرله د داهستان له بېديا څخه چيرې چې پخوا د آمو سيند و کسپين بحيرې ته وربهېدئ، د پرثاوا په ساتراپي ورننوتل. سليوکيانو و دغي پېښې ته ايله ورکړه چې څه پېښه دي سي. دغه نوې شاهي سمدلاسه پر بشپړې پرثيا باندي چاپېره سوه. دا چې دوی د زړې ساتراپۍ [پرثووا] پر اوېجه باندي خپله شاهي تاسيس کړې وه، نو دغه اشغالګران هم د دغي ساتراپۍ په نامه سره پرثيايان وبلل سول، او سوکه - سوکه دوی پخپله هم وروسته ځانونه دغسي وښوول، هغه پخوانی ولسي نوم پرثاوا هم په جغرافياوي مانا سره اخسته کېدئ، خو وروسته د پرثوانه په توګه سره بيرته ولسي نوم ګرځېدلئ دئ.

ترمخه مو ولیدل چي کلاسیک او وروستني مؤرخان داسي پوهېدلي دي چي وایي توهي (تاهي) او پارني ټول کوچیان او پردېسان ول. د دوی په برعکس، تارن (۱۹۳۸: ۵۷۵) پر دې باندي ټینګار کوي چي دهای Dahae قبیله "یومخیزه کوچیان نه ول". په دغه پسې ئې دی خپل فهم داسي افاده کوي: "د باختریانو زورور خو نیمګړي خپلواک ساتراپ دیودوتس Diodotus هڅه وکړه چي (داهي) تر خپلي سلطې لاندي کړي. څو د دء له جوغه څخه وتلي وي دوی د هیرکانیې - پرثیا و ساتراپۍ ته ځني وتښتېدل". دغه خلک پارني د داهو د اتحادیې یوه څانګه وه.

دغه لانجه چي موږ اوس په بوخت یو، سترابون (یوولسم ۹، ۳) په خپل وخت کي ورسره مخامخ ؤ چي دی ئې داسي ښووي: "دوی وایي چي اپارنیان (اپارنوی Aparnoi) ده آی (Daai) له هغو ده آیو Daon څخه دي کم چي د میوتیس Maeotis تر خلیج لوړ اوسېدل، او خندي (خندوی Xandoi) یا پریي (پریوی Parioi) نومېدل، ځني رالېږدېدلي دي. خو هغه نظر چي وایي دغه (ده آی) د هغو سکیثو یوه برخه ده کم چي د میوتیس د خلیج پر شاوخوا باندي اوسېږي، په خپل بشپړوالي سره منل سوئ نه دئ". څنګه چي دی (د پارنیو) دغه پېژندنه هم نه مني نو و هغو (داهو) ته مخ وراړوي چي دی (سترابون، سوولسم ۱۰۷) وایي: هغیو "د اپارني لقب اخیستئ دئ"، او د کسپین بحیرې پر ختیځه غاړه باندي ژوند کوي. د سترابون په زمانه کښي دغه نظر او فهم عمومیت لاره.

د سترابون د معلوماتو مهم ټکئ دا دئ چي دی وایي یو ټل "داهو" د "اپارني" لقب اخیستئ دئ. نو په دغه لقب اخیستني سره دوی یو نوئ شهرت هم موندلئ دئ.

واقعیت به خود داسي ؤ چي په "داهو" کښي به یو خېل "اپارني" نومېدل.

## د داهستان ازل

## د غزنویانو په دوران کښي

تر دغه زمانه پوري چي غزنوي تورکان پر دغي لویي سیمي باندي د قدرت خاوندان ول د داهستان نوم لا ځای پر ځای پاته ؤ. زء به لاندي له تاریخ بیهقي څخه ځیني اخیستني درکم چي و لوستونکي ته ئې د جغرافیاوي سیمي ځیني خواوي وربښکاره کېدلای سي. بیهقي ابوالفضل داهستان د سرتوري په فتحه سره دَهستان کښلئ دئ.

"امیر مسعود را بسیار نزُل فرستاد پوشیده به خطها و نامها و ظرائف گرگان و دَهستان جز از آنچه در جملهٔ انزالِ امیر محمود فرستاده بود" (تاریخ بیهقي ۱۳۶۴: ۱۶۳).

وړاندنۍ یادونه د ۴۲۱هـ ده او دغه پسې اقدامات ئې په ۴۲۴هـ کښي کړي دي. نو بل عبارت ئې داسي ښوونه کوي.

"و حاجب بزرگ بلگاتگین از نشاپور برفت با غلامان و خیل خود، و سپاه سالار علی دیگر روز چهارشنبه. و نامه ها رفت به باکالنجار با مجمزان تاهشیار و بیدار باشد و لشکری قوی به دَهستان فرستاد تا به رباط مقام کنند و راهها نگاه دارند" (همغه: ۴۷۵).

دغه مانا اطلاعات او مخابراتي تشکیل ئې لاره.

بیا وروسته بله یادونه ئې چي د ۴۲۶هـ ده، د سیمي د اشغال په اړوند اندېښمن دي:

"از خواجه بو نصر مشکان شنیدم گفت: چون باز گشته بودیم امیر مرا بخواند

تنها و با من خلوتی کرد و گفت درین بابها هیچ سخن نگفتی. گفتم زندگانی خداوند دراز باد، مجلسی دراز برفت و هر کسی آنچه دانست گفت ... چون همگان بگفته بودندي و باز گشته با تو مطارحه کردی، که رای تو روشن است و شفقت تو دیگر و غرضت همه صلاح ملک. گفتم: زندگانی خداوند دراز باد، اگر چنان است که این چه خداوند را گفته اند از حال دَهستان و گرگان و طبرستان بجای آید از علف و زر و جامه و در خراسان خللی نیفتد این سخت نیکوکاری و بزرگ فایده یی است" (تاریخ بیهقی: ۱۳٦۴: ۵۷۷).

دغه زمان د تورکمنانو سېل پر سيمي باندي ورتلونۍ وُ او تورکان ځني اندېښمن ول.

"و بونصر مشکان را گفت: نامه ها باید نبشت به مرو و بلخ تا هشیار و بیدار باشند و بیابانها و گذرهای جیحون باحتیاط نگاه دارند، که ما قصد دَهستان داریم تا ازین جانب در روی خوارزم و نسا و بلخان کوه باشیم و ترکمانان را به جمله از خراسان رمانیده آید و شغل دل نماند" (تاریخ بیهقی: ۱۳٦۴: ۵۷٦).

په هر عبارت کښي ئې پل کرښي خپلي نه دي. له وړاندني عبارته څخه داسي فهمول کېږي چي د جیحون و شمال او ختیځ ته خراسان ویل کېدل. دوی غوښتل چي د جیحون غاړي ئې ورته نیولي وي. څو تورکمنان و خوارزم، داهستان، او گورگان ته وراووښتي نه وي. کال هم هغه ۴۲٦هـ دئ.

"دی سخن رفته است درین رفتن بر جانب دَهستان و رای عالی قرار گرفته است که ناچار بباید رفت. و خداوند شمشیر در مجلس خداوند که گفتند: "ایشان فرمان بردارند هر چه فرمان باشد" شرط کار ایشان آن است ولاکن بابنده چون بیرون آمدند پوشیده بگفتند که این رفتن ناصواب است و از گردن خویش بیرون کردند" (تاریخ بیهقي ۱۳٦۴: ۵۷۹).

له غزني څخه سپاه تر خوارزم او داهستان پوري بېول به هرومرو ستونزي لرلي. ځکه ئې نو ځيني سپاه سالاران لا سرغاړي سوي ول چي دغه ئې دښېگڼي او بریاوو زېری نه دئ.

"چون روز ده بگذشت – و درین مدت پیوسته شراب میخوردیم. امیر خلوتی کرد با وزیر و اعیان دولت و قرار گرفت که امیر مودود بدین لشکرگاه بباشد با چهار هزار سوار از هر دستی و مقدمان ایشان، و التونتاش حاجب مقدم این فوج، و همگان گوش باشارت خداوندزاده دارند، و دو هزار سوار ازین عرب مستامنه به دَهستان روند با پیری آخور سالار و سه هزار سوار سلطانی نیمی ترک و نیمی هندو، و ایشان نیز گوش بفرمان امیر مودود دارند. و خلوت بگذشت و لشکر به دَهستان رفت و مثالها که بایست سلطان فرزند را بداد. و روز یکشنبه (دوشنبه) دوازدهم ماه ربیع الاخر از گرگان برفت، و ازینجا دو منزل بود تا استراباد" (همغه: ۵۸۴).

کال ئې ۴۲۹هـ وُ. داسي ایسي لکه تهاجمي مرحله چي دي پرېښووله سوې او دفاعي مرحله دي پیل کړه سوې وي. ویلاړ ئې داؤ چي د خپلي ارتي سیمي ساتنه ئې کړې وي.

"و درین هفته ملطفه های مهم رسید از دَهستان و نسا و فراوه که باز گروهی ترکمانان از بیابان برآمدند و قصد دهستان دارند تا چیزی ربایند. و امیر مودود نبشته بود که "بنده بر چهار جانب طلیعه فرستاد، سواری انبوه، و مثال داد تا اشتران و اسبان رمک را نزدیک تر گرگان آرند، و بر هر سواری که با چهارپای بود دو سه زیادت کرد". و جوابها رفت

تا نیک احتیاط کنند، که رایت عالی بر اثر [این نامه] باز گردد". (بیهقي ۱۳۶۴: ۶۰۲).

دا چي داسي پېښه سوې وه نو تورکمنان تر جیحون وراووښتي ول، او د داهستان، گورگان (جورجان) او فراوه و خوا ته مخ پر وړاندي تلل. په ترمخه کښي دوی نه غوښتل چي د سلطان مسعود له لويي سپاه او لښکره سره مخامخ سوي وي، او هغه لکه چي د دې توان نه لاره چي د ډېري مودې له پاره په سیمه کښي ورته پاته سوئ وي. دء خپل زوی په کوچیني سپاه سره تر شا ورپرې ایښئ ؤ. خو په خپله له لويي سپاه سره ځني گرځېدلئ ؤ.

"بزینهار خداوند عالم سلطان بزرگ ولی النعم آمدیم تا خواجه پایمردی کند و سوی خواجهٔ بزرگ احمد عبدالصمد بنویسد و او را شفیع کند، که ما را با او آشنایي است و هر زمستانی خوارزم شاه آلتونتاش رحمه الله ما را و قوم ما را و چهارپای ما را به ولایت خویش جای دادی تا بهارگاه و پای مرد خواجهٔ بزرگ بودی، تا اگر رای عالی بیند ما را به بندگی پذیرفته آید، چنانکه یک تن از ما به درگاه عالی خدمت میکند و دیگران به هر خدمت که فرمان خداوند باشد قیام کنند و ما در سایهٔ بزرگ وی بیارامیم و ولایت نسا و فراوه که سر بیابان است بما ارزانی داشته آید تا بنه ها آنجا بنهیم و فارغ دل شویم و نگذاریم از بلخان کوه و دهستان و حدود خوارزم و جوانب جیحون هیچ مفسدی سربرآرد و ترکمانان عراقی و خوارزمی را بتازیم. و اگر و العیاذبالله خداوند ما را اجابت نکنند ندانیم تا حال چون شود، که ما را بر زمین جایی نیست و نمانده است. و حشمت مجلس عالی بزرگ است زهره نداشتیم بدان مجلس بزرگ چیزی نبشتن، به خواجه نبشتم تا این کار به خداوندی تمام کند ان شاء الله عزوجل" (بیهقي ۱۳۶۴: ۶۱۱-۶۱۲).

وړاندني عبارت داسي ښووي چي يو ټل تورکمنان له شمال ختيځ څخه تر جيحون وراووښتي ول. بل دا چي خوارزمي تورکمنان د جيحون د کښتنی برخي په ختيځ که په لوېديځ کښي ول. تر دغو تورکمنانو دمخه يوه بله ډله د سلجوقيانو په نامه سره د سلطان محمود په موافقې او اجازې سره تر جيحون وراووښتي او پر سیمي باندي چاپېر سوي او تر عراقه پوري رسېدلي ول. په خپله سلطان محمود هم پر خپلي اجازې وړکولو باندي پښېمانه ؤ. دغه زمان تورکمنان پر اوسني تورکمنستان باندي چاپېر سوي ول.

"و باصینی قاصدان فرستاده بودیم، بیامدند و نامه ها آوردند به مناظره در هر بابی که رفت و جوابها رفت تا بر چیزی قرار گرفت. وصینی به نشاپور آمد روز چهارشنبه ده روز مانده از شوال. و باوی سه رسول بود از ترکمانان. یکی از آن بیغو و یکی از آن طغرل و یکی از آن داود. و دانشمند بخاری[1] با ایشان. و دیگر روز ایشان را به دیوان وزارت فرستادند و بسیار سخن رفت و تا نماز دیگر روزگار شد و با امیر سخن به پیغام بود، آخر قرار گرفت بدانکه ولایت نسا و فراوه و دَهستان بدین سه مقدم داده آید و ایشان را خلعت و منشور و لوا فرستاده شود، وصینی برود تا خلعت بدیشان رساند و ایشان را سوگند دهد که سلطان را مطیع و فرمان بردار باشند و بدین سه ولایت اقتصار کنند و چون

---

[1] دغه بخاري عالم به ښايي د زړونو احاديثو ثبتونکئ ليکوال امام ابي عبدالله محمد بن اسماعيل بخاري ؤ، چي له بخارا څخه به ئې د شفاعت او منځگړتوب له پاره ورسره بېولئ ؤ (پ).

سلطان به بلخ آید و ایشان ایمن شوند یک تن ازین سه مقدم آنجا به درگاه آید و به خدمت بباشد و رسولدار رسولان را به خوبی فرود آورد. و استادم منشورها نسخت کرد، و تحریر آن من کردم، دَهستان به نام داود و نسا به نام طغرل و فراوه به نام ییغو، و امیر آن را توقیع کرد. و نامه ها نوشتند از سلطان و این مقدمان را دهقان مخاطبه کردند، و سه خلعت بساختند چنانکه رسم والیان باشد: کلاه دو شاخ و لوا و جامهٔ دوخته برسم ما، و اسب و استام و کمر بزرهم برسم ترکان" (بیهقي ۱۳۶۴: ۶۴۱).

دغه درې کسان سره ورونه ول، خو په وراندني عبارت کښې داسې پېژندل سوي نه دي، دوی د هغو تورکمني ټلوالو مشران ول چې ترمخه ئې سلطان د مخنیوي له پاره له غزني څخه ورغلئ ؤ. خو په وروسته کښې تر جیحون وراووښتی او حکومت یا لا سلطان به په خپله هغه درې سیمې ورسپارلي وې.

"ما درین حدیث بودیم که پیکی در رسید و ملطفه های منهیات آوردند که "چون خبر رسید از سلطان که از سرخس برفت رعبی و فزعی بزرگ برین قوم افتاد و طغرل اعیان را گرد کرد و بسیار سخن رفت از هر لونی، آخر گفتند طغرل را که مهتر ما تویی، بر هر چه تو صواب دیدی ما کار کنیم. طغرل گفت ما را صواب آن مینماید که بنه پیش کنیم و سوی دَهستان رویم و گرگان و آن نواحی بگیریم که تازیکان سبک مایه و بی آلت اند، و اگر آنجا نتوانیم بود به ری برویم که ری و جبال و سپاهیان ما راست و بهیچ حال بادشاه به دم ما نیاید چون ما از ولایت او برفتیم، که این بادشاهی بزرگ است و لشکر و آلت و عدت و ولایت بسیار دارد. و سامان جنگ ما بد است و از دم ما باز نخواهد گشت" (بیهقی ۱۳۶۴: ۸۲۶-۸۲۷).

په ښکاره سره ترمخني او وروستني دوه عبارتونه یو له بل سره متضاد ایسیږي. د ترمخني عبارت له مخې څخه حکومت و دوی ته درې اوبچې او سیمې له سوغاتونو سره ورکړلې. خو په هغو یادو کړو اویجو کښې خلک اوسېدل. نو دوی باید دغه اوبچې له ځایي خلکو څخه نیولي وای او حکومت به ئې دفاع نه کولای. وراندنی عبارت دا په څرګنده ښووي چې دغه تورکمنان نه یوازې د ورکړل سوو اویجو د نیولو له پاره په تلاښ کښې ول، بل لا په سیمه کښې ئې د نورو اویجو د نیولو ټکل او فعالیت هم لاره. دوی تر خوارزمیا، اوسني تورکمنستان ورتېر سوي او مخ د بین النهرین (عراق) و خوا ته پر مخ تلل او عراق ئې هم فتح کړئ او نیولئ ؤ.

کله چې په هند کښې د انګلیسانو له پرمختګ سره په سیالي کښې روسانو هم په خپل پرمختګ کښې داهستان اشغال کړئ ؤ. څنګه چې په روسي ژبه کښې هې /ه/ نسته او دوی ئې په ګاف /ګ/ سره وایي ځکه ئې نو داهستان هم داګستان باله. خو په اوس کښې ئې د سیمې خلګ داغستان بولي چې دغه واقعیت بیا دلالت پر دې باندې کوي چې د اوسنیو ځایي خلګو په ژبه کې ګاف /ګ/ نسته او دوی ئې ځکه نو په غین /غ/ سره داغستان بولي.

څنګه چې عراق د دجلې او فرات سیندونو له برکته څخه یوه آباده سیمه وه، نو هم سلجوقیانو زور واهه چې و عراق ته رسېدلي وي، او هم ورسېدل او هم دغو تورکمنانو زور اچولئ ؤ څو و عراق ته رسېدلي وي او دوی هم ورسېدل. په پایلامه کښې ئې د بغداد و خلافت ته د پای ټکئ کښېښاوه. دغه پېښه نوري زغردي دنګلې هم

لرلي دي، چي ما هم بله ليكنه پر كړې ده.

پايلامه:

د داهو (توهو) او پارنيو په برخه كښي دوه نظره وليدل سول. د يوء نظر له مخي څخه دوى د باختريانا، سغديانا او مارگيانا په كرښوورونو كښي تر سكندري جگړو لږ وروسته له سهيلي روسيې څخه يا د ياخښارتا (سيحون) له پوريخوا (شمال) څخه و نوموړ ستراپيو ته او هم د پرثيا (پرثووا) او هيركانيې و شمال ته وركوچېدلي دي. د دغه نظر له ټينگو پالونكو څخه يو التهايم (۱۹۵۳: ۲۱۰) دئ چي داسي ئې كښلي دي: "د پارنيو قبيلې و ځان ته قاطع ارزښت وگاټه. دوى هم د اوخوس راده پر غاړو باندي او هم د تېجند راده پر غاړو باندي اوسېدل. اى د خوارزميا د ايسته غرونو و شمال ته ځايان ول. دغه پارني په هغو سكيثو سره پېژندل كېږي كوم چي له سهيلي روسيې څخه لېږد كړئ دئ".

بل نظر ئې داسي وايي چي داهي (توهي) له پخوا څخه لا پر دغو سيمو باندي ستانه ول، چيري چي دوى وروسته موندل سوي او پېژندل سوي دي. اى دوى تر لوى سكندر دمخه لا هم پر دغو سيمو او اويجو باندي اوسېدل. دغه نظر د لرغونپوهني په وروستنيو كيندنو سره لا نور هم تائيد او پياوړئ كړه سوئ دئ. بل لا دا هم چي د لوى سكندر په دوران كښي هم داهوي (داهي، توهي) په نوموړو ساتراپيو كښي اوسېدل او هم ده دوى په خپل لښكر او سپاه كښي او هم ئې په خپلو شاهي ساتندويانو كښي شامل كړي ول.

دوى لا هغه زمان د تانياس Tanias (دنيوب) د سيند پوريخوا هم اوسېدل (آريانوس، درېيم ۸۲، ۸). دا لا څه چي دوى د داريوش Darius په هغه لښكر او سپاه كښي چي له لوى سكندر سره جنگېدل هم شموليت لاره (اريانوس، درېيم ۱۱، ۳). او دوى د بېسوس په لښكر كښي هم ولاړ ول (اريانوس، پنځم، ۱۲، ۲) چي ترمخه ئې هم يادونه سوې ده.

گيرشمن (۱۹۶۴: ۴۴۰) كاږي: "پرثانه د ايراني كوچيانو يوه قبيله ده چي په داهو پوري ئې اړه لرله او دغو بيا د بېلابېلو كوچي قبايلو يوه اتحاديه جوړوله چي ارڅكيانو پكښې د دوى [خپل] شاهي كهول تاسيس كړ".

د هرڅفلد (۱۹۲۹ لومړى ۱۱۰) د بيان له مخي څخه پرنوي يا اپارنوي د هغي داهي قبيلې نوم دئ په كومي پوري چي ارڅكيان اړه لري. دغه شاهي كهول د پرثيا ته تر وركښېوتني وروسته په نيشاپور كښي ستانه سو. په دغه پسې فې سم نيشاپور د پرثيا د كرښور مركزي شاهي ښار و، او د ساسانيانو په بشپړه زمانه كښي هم داسې و.

داسي ايسي لكه هرڅفلد چي به شمالي نيسايا په سهيلي نيسايا سره اشتباه كړې وي. ځكه چي هغه نيسايا چي پارنيو د خپل واكمنتوب مركز گرځولې وه شمالي پرثيا (پرثووا) په اسناوېنه كښي وه چيري چي ايسيدوروس (۱۹) ښوولې ده.

وړاندني اكثريت بيانونه د لوى سكندر او تر ده وروسته زمانو د يوناني مؤرخانو له خوا څخه ثبت سوي او بيا نورو اوسنيو پوهانو يو راز او بل راز فهمولي او توجيه كړي دي.

د اسوريا د بادشاهانو دبرليكونو په سرې سره هغه چي په درېيم سليمان پوري اړه لري د عيسى تر ميلاد (زوكړې) څه درې زره كاله دمخه پرثووانه د داهو په شمول داسي

ښوويي چي اوو ء ويشت قبيلوي بادشاهۍ ئې لرلې، او د ء له دوی څخه ججې اخيستلې. دغه شاهۍ له زاګروس سلسلې غرونو څخه تر پاميره پورې او هم د سيحون پوريخوا او په هاماوران (اوسنۍ توركيه) كښې د باسفورس ترآبنا پورې خپرې وې.

داسي ايسي لكه پرثووانه (پخواني پښتانه) چي به هغه زمان د داهو د قوم يوه قبيله وه. بيا نو دغه لوی قوم چي د سير (سيحون) راد ء له پورې خوا څخه ئې د كسپين بحيرې تر ختيځو غاړو پورې ژوندون لار ء، ولې ئې د غړو شمېر له ميليونونو څخه و زرونو ته راكم كړ ء سوئ دئ؟ علل او عوامل ئې څه دي يا څه ول؟

يو خو له دغه لويه قومه، داهو څخه درې لويو قبيلو انشعاب يا بېلوالئ موندلئ دئ. يوه له دغو درو قبيلو څخه اڅكزيان دي. د دوی د نيكه (ارڅک) غور نيكه ځان "پرڅه دارای" ملقب كړئ دئ، د د ء اصلي نوم نه و ما ته او نه به هم ښايي و بل چا ته ورمعلوم وي. په دغه شاهانه لقب سره هم چا پېژندلئ نه ؤ، او لا به ئې تر اوسه هم پېژندلئ نه وي، مګر زما ليكنه ئې لوستلې وي.

دغه پرڅه دارای د لوی سكندر په اردو كښې سپاه سالار ؤ. دی له خپلي سپاه سره په فارس كښې مقرر سوئ ؤ چي هورې ئې خپله شاهي جوړه كړه. د ء خپل زوی ارڅک له يوې سپاه سره و پرثووا (اوسني خراسان) ته واستاو ء چي هورې ئې له مكدونيانو څخه پرثيا ونيوله.

په تاريخي آثارو كښي يو خورا ارزښتناک ميډال سته چي د پرڅه دارای، د د ء د زوی ارڅک او د سيلوكس د زوی لومړی انتيوخوس درو سرو څېرونه ورباندي ښوول سوي دي چي دوی د روغي او دوستۍ مركه كړې ده.

كله چي د ارڅک نمسی ارڅک چي د پرڅه دارای كړوسی ؤ، په پرثووا كښي بيا بله پلا بادشاهي جوړه كړه او په د ء پسې ټولو بادشاهانو ځانونه ارڅک بللي دي، نو داهوي، نه د اڅكزو قبيله له داهو څخه بېله سوې ده.

بله قبيله چي له داهو څخه بېله سوې ده هغه ترينان دي. دوی په اصالت كښي (توهي آرين) ول چي مانا ئې رودي توهي ده. دوی به په ډېر احتمال سره د هريرود پر غاړو باندي اوسېدل، او نوم به ئې هم له دغه راد ء سره تړاو لري. (توهي آرين) په وګړيزه ژبه كښي ئې لنډون (ترين) سوئ دئ. د پښين ترينان لا اوس هم په دې عقيده دي چي (اڅكزي) د (ترينو) يوه قبيله ده. په واقعيت كښي په خپله (ترين) او هم (اڅكزي) د توهو يا داهو دوې قبيلې دي.

درېيمه قبيله چي له داهو، توهو څخه بېله سوې ده. هغه توخي دي. ترمخه د دې ښوونه سوې ده چي د لوېديځ هې /ه/ د سيمي په ختيځ كښي په خې /خ/ سره ويل كېږي چي توهي هم توخي سوي دي. او نور پښتانه ختيځوال بيا حې /ح/ په خې /خ/ سره اړوي. محمد ته مخمد، الحمد ته الخمد، احمد ته اخمد، حميد ته خميد، او داسي هم نور څه وايي.

نو له داهو څخه دغه د اڅكزو، ترينو، او توخو درې قبيلې بېلې سوي دي كه بله قبيله لكه الانان ځني بېله سوې وي هم دي وسي. خو ز ء ورته ځير سوئ يا پر پېښ سوئ نه يم.

يو بل عامل چي قوم او قبيله ننوي يا ئې تباه كوي هم، هغه په دوی كښي د ملي فهم، سياسي شعور، او اتحاد نستوالئ دئ. د قوميت پر ځای باندي قبايليت پالنه پكښې

پیاوړې وي چې دغه نو په اصالت کښې تفرقه او د خپلې تباهۍ توخم په ځان کښې لرل دي. نو چې هم جهالت سي او هم قبیلوي تفرقه سي نو دوی په خپله هم یوې قبیلې بله قبیله شړلې او تباه کړې ده. دغه تاریخي واقعیتونه دي.

بل دا چې د دباندني دښمن پر ضد باندې ئې نه اتفاق سره کولای سوای او نه ئې هم د ځان دفاع کولای سوای چې د دغه ناوړین په نتیجه کښې ئې خورا ډېره سیمه بایللې ده، او آن لا خپله آزادي هم. دغه قبیلوي تفرقه ئې دونده په شعوري توګه د وګړو له خوا څخه نه پالله کېږي لکه د نیمګړو له خوا څخه چې پالله کېږي. نیمګړي دغه قبایلیت پالنه په شعوري توګه سره کوي، او د سیاسي اهدافو له پاره کار څني اخلي. له بده مرغه چې ما پرته له ښادروان سرغنه محمدداود د افغانستان لومړنی جمهور رئیس څخه بل داسي څوک پېژندلئ نه دئ چې د قبایلیت پالني مخنوي دي ئې کړئ وي یا دي ئې لږ تر لږه غندلې وي. وایي چې د حسن زوی فرید، ملقب په شېرشاه سوري سره، هم د قبایلیت مخالف ؤ.

دا چې نو ولې قبایلیت پالنه په دوی کښې داسي پیاوړې ده هغه سرنی عامل ئې د دوی جهالت دئ. دوی و خپلو نژدو شخصي ګټو ته ګوري، خپلې لیرې ملي ګټې نهویني او نه هم پرې پوهیږي. که دوی د عقل او سیاسي شعور خاوندان وای، دوی به نه یوازې یوه لوېشت مځکه بایللې وای بل به ئې لا تر پخوا نوره هم پراخه کړې وای. نو څه چې و دوی ته په کار دي هغه د جهالت له حیوانیته څخه وتل دي.

په پای کښې مي باید یوه بله یادوءنه هم کړې وي، او هغه دا چې د داهو نوم ولې داسي لږ ؤ ډېر بېلابېل کښل سوئ دئ؟

دا ځکه چې دغه د بېلابېلو ټولنو ادائنه ده او هم یوناني لیکوالانو دغه بېلابېل اورېدلئ او د خپلې ژبې له اداینې سره ئې لږ ؤ ډېر سمون ورکړئ دئ. د څرګندوني په توګه موږ نن ورځ دغه نوم داهوءی یا داوءی تلفظ کوو، خو دري ژبي کسان ئې داوي Dawi وایي.

بل دا چې په پښتو کښې هم دوې اداینې لري. د څرګندوني په توګه په اصلي مفرد فاعلي حالت کښې داوءی Daway ویل کیږي خو د اضافت او په مفعولي حالت کښې داوي Dawi ادائنه لري. نو په یوناني ژبه کښې هم دغه نوم د بېلابېلو ژبنیو یا ګرامري حالاتو تابع ګرځول کېږي. بل دا چې دغه نن په پښتو کښې لږ تر لږه درې لویې ژبنۍ لهجې سته. چیري چې هې /ه/ تلفظ سته، هورې دغه نوم (توهي) یا دغه ته ورته ویل کېږي. خو چیري چې بیا هې /ه/ په خې /خ/ سره تلفظ کېږي هورې دغه نوم توخي Toxi ویل کیږي. نو دغسي نومونه هم د ګرامري حالاتو تابع وي او هم تصریف مومي، او هم د ږغېدونکو او لیکوالانو د لهجوي اداینې تابع وي.

پو بل څه باید لا هم پر زیات کم چې د پښتنو توکوم چې پخوا ئې خورا لوی هیواد لارء یا پر خورا ارته مځکه باندې ځایان ول، دلالت پر دې باندې کوي چې شمېر به ئې د اوسنیانو پښتنو لس ګرایه ډېر ؤ. بیا نو څه پېښه سوې ده چې د دوی داسي ننېدلي او یو کوچني قوم څني جوړ سوئ دئ. ځیني عوامل مي ئې ترمخه یاد کړل، بل وروستنی عامل ئې د دوی خپل جهالت او ضعیف النفسي ده یا ملي شعور او احساس نه لرل دي. نو دوی پر درېیم نسل باندې خپله ژبه بایلي دا که به څه هم په خپل مملکت کښې او د بلې ژبې د ږغېدونکو په چاپېریال کښې واقع وي.

پای



استاد حبیب الله رفیع/ کابل

# د استاد داوي ورځپاڼه لیکنه

ځوان عبدالهادي داوی د هېواد په یوازیني علمي مرکز حبیبه لېسه کي داسي وخت زده کړي وکړې چي له همدې لیسې نه د هېواد لومړنی روشنفکري غورځنګ یعني مشروطیت هم راولاړ شوی وو او د هېواد د آزادۍ او پرمختګ لپاره ئې په ډېر جرئت د سر او مال قربانۍ ورکولې او د توپ په خوله کي به ئې ویل:

ترک مال و ترک جان و ترک سر
در ره، مشـروطه اول منزلست

په داسي چاپېریال کي دی د مبارزې او انقلاب په روحیه وروزل شو او د یوه روڼ اندي ځوان په توګه ئې د هېواد پالني پر لاره ګامونه کښېښودل.

ده ته خدای پیاوړی قلمي او ادبي استعداد ورکړی وو، له همدې امله ده خپله مبارزه د وخت په یوازیني اخبار سراج الاخبار افغانیه کي د شعر او نثر په لیکلو پیل کړه او د افغانستان د ژورنالیزم له پلار علامه محمود طرزي سره ئې په دې اخبار کي د محرر په توګه کار پیل کړ، اخبار لیکنه او اخبار چلونه ئې زده کړه او له دې سنګر نه ئې خپله ادبي او انقلابي مبارزه پیل کړه.

تر داوي صاحب څو لسیزې وړاندي د هېواد یو بل نابغه زوی سید جمال الدین افغان له کورنی زورواکۍ او بهرني ښکېلاک سره د مبارزې یوه داسي لاره جوړه کړې وه چي اسلامي او ختیځ هېوادونه له کورني استبداد او بهرني ښکېلاک سره داسي اغېزمنه مبارزه وکړي چي هم کورنی استبداد او هم بهرنی ښکېلاک چي یو له بل سره تړلي یو په بل پسې را نسکور کړي، د داسي مبارزې د کامیابۍ لپاره ئې د مفاهمې لاره هم تجویز کړې وه او د قلم آمیزي مبارزې لاره هم. همدا سبب وو چي ده له مستبدو واکمنو او بهرني ښکېلاکګرو سره مفاهمې کولې او په شرقي او اسلامي هېوادو کي ئې ځوانان هم د انقلابي او قلم آمیزې مبارزې لپاره روزل او د استبداد او ښکېلاک د رانسکورولو په لاره کي ئې علمي ګامونه هم اخیستل.

د هېواد د مشروطیت غورځنګ هم د علامه سید همدا لاره خوښه کړې وه او د دې

لاري ځوان لاروي عبدالهادي داوي هم دا لاره
پالله، انقلابي مقالې او شعرونه به ئې ليکل
او په سراج الاخبار افغانيه کې خپرول، ده د
(بلبل گرفتار) د انقلابي مسدس په ليکلو سره
هم کورني استبداد ته ټکانونه ورکړل او هم ئې
د انګريزي ښکېلاک ماڼۍ په لندن کي
ولړزوله او هم ئې د فکري او عملي مبارزې
دوارو د پر مخ بېولو کلک هوډ کړی وو او د
خپل انقلابي ملګري عبدالرحمن لودين په
ملتيا ئې د يوه وسله وال اقدام په کولو سره
وغوښتل چي د وخت مستبد او انګرېز نوکره
پاچا له منځه يوسي خو ګولۍ خطا ولاړه او
ځوان عبدالهادي او لودين د يوسفي زندان
مېلمانه شول او خپل د ځوانۍ آزاد
ژوند ئې د خپل هېواد د ازادۍ لپاره
په بند کي تېر کړ. ډېره موده نه وه
وتلې چي د دوی خطا شوې ګولۍ د
يوه بل هېواد پال هېوادوال په لاس په
هماغه ککرۍ کي خښه شوه چې له
استبداد ډکه او د پردي ښکېلاک د
دوام لپاره ئې کار کاوه.

حساس او با احساسه ځوان
عبدالهادي خان او ملګري ئې داسي
وخت له زندانه راووتل چي ځوان
شهزاده عين الدوله امان الله خان د
خپلې پاچايۍ اعلان او د خپل هېواد
داستقلال اذان د عيدګاه په لوی
جامع جومات کي په جرئت او ډېر لوړ
غږ کړی او ويلي ئې وو: "زه به دا د
سفربرۍ جامې تر هغې له تنه ونه
باسم څو چي د هېواد مور ته د
خپلواکۍ او استقلال جامې ورواندې
غوندم او زه به دا خپله توره تر هغه
تيکي ته وانه چوم څو چي د خپل
هېواد د ازادۍ دښمن پر ځای
کښېنوم!".

له زندانه د استاد عبدالهادي داوي په
راوتلو سره کورني استبداد رانسکور شوی او
له بهرني ښکېلاک سره هم غزا پيل شوې وه،
هېواد اړه درلوده چي هېوادپال ځوانان ئې
خدمت ته ملا وتړي او داوي صاحب ارزو
درلوده چي د خپل ځوان نظام او خپل خپلواک
هېواد لپاره له لوی نه لوی خدمت وکړي نو
ځوان حکومت هم د خپلو ادارو د چلولو لپاره
د وړ ځوانانو موندلو او مقررولو هڅې پيل
کړې.

په دې لړ کي داوي صاحب هم
وروغوښتل شو او يوه داسي ځای ته بوتلل



د اروابناد داوي د ځوانۍ د وخت تصوير

شو چي د وخت ځوان پاچا اعلیحضرت غازي امان الله خان، د وخت صدراعظم سردار عبدالقدوس خان اعتماد الدوله او د باندنیو چارو وزیر علامه محمود طرزي هلته ناست ول او په دې ډله کي دا موضوع مطرح شوه چي په دې حساس وخت کي چي د ازادۍ جګړه روانه ده باید اخبار هم بېرته را ژوندی شي او د آزادۍ په لاره کي تبلیغ وکړي.

استاد داوي په یوه مرکه کي څرګنده کړې چي په دې واره خو درانه مجلس کي لومړی دا مطرح شوه چي جریده دي هماغه د سراج الاخبار په نامه وي که په بل نامه؟ تر بحث وروسته پرېکړه پر دې وشوه چي اخبار دي په نوي نامه خپور شي چي بیا ما یو شمېر نومونه دوی ته وړاندي کړل او په هغو کي د (امان افغان) نوم هم وو. دا نوم په یوه خوله ومنل شو او زه تر دې وروسته د اخبار د رااېستلو په کار بوخت شوم!

دا ډېر ښه انتخاب او وړ کار وو، ځکه استاد داوي په سراج الاخبار کي خپله د اخبار لیکني تجربه پخه کړې وه او په دې حساس وخت کي ئې د ورځپاڼه لیکني له لاري د انګریز په وړاندي جهاد او غزا ته ښه اوږه ورکولای شوه.

د انګریز په وړاندي وسله واله غزا په تېزۍ روانه وه چي استاد داوي د ۱۲۹۸المریز کال د وري پر ۲۲ (۱۹۱۹کال د اپریل ۱۲مه) نېټه د امان افغان په را اېستلو سره قلمي غزا هم پیل کړه. ده د اخبار کرښه – کرښه په مسئولیت وړاندي کوله او د خپلواکۍ د تر لاسه کولو او ساتلو سپېڅلي دنده به ئې پکښې ځېرله. جریده اونیزه وه او اطلاعات باید ورځ په ورځ رسېدلي وای نو کله به چي مهم خبر راغی ده به په بېړه په یوه وروکې پاڼه کي چاپ کړ او پر خلکو به ئې وریا ووېشه، پر دې پاڼه به لیکلي ول: (فوق العاده امان افغان – رایګان) په دې پاڼو کي یو مهم خبر دا وو چي د پکتیا په پټان سیمه کي یوه انګریزۍ الوتکه چي پر غازیانو ئې بمباري کوله د غازیانو له خوا په ټوپک وویشتله شوه چي له سرحد نه په اوښتو سره راولوېده او له منځه ولاړه.

همدا راز اخبار په خپلو عادي ګڼو کي د خپلواکۍ پر ارزښت د ولس پر وحدت، د دښمن په مکارۍ او غدارۍ درنې مقالې لیکلې چي له هېواد نه بهر برتانوي هند او انګلستان ته هم رسېدلې.

د ۱۲۹۸کال د وري پر پنځلسمه نېټه د افغانستان د سولي هیئت د علامه محمود طرزي په مشري د هندوستان پر لوري روان شو په دې هیات کي داوي صاحب هم وو او هیئت غوښتل چي د برتانوي هند له حکومت سره د افغانستان د خپلواکۍ د پاته مسایلو په اړه خبرې وکړي، داوي صاحب په یوه مرکه کي څرګنده کړې: یوه ورځ چي د مجلس په ترڅ کي د انګلیس هیات مشر وپوښتل چي زه د امان افغان مدیریم نو وئې ویل: "امان افغان زموږ د دښمن دئ!".

هو! د انګریزانو دې دښمن اخبار چي استاد داوي چلاوه خپله ملي دنده پر مخ بېوله.

دې اخبار به لیکل:

"در دنیا نخواهد بود که برای مدافعه زنده گی خود آخرترین کوششهایی که میتواند و تدبیر های که میداند به کار نیز ... حتی در راه دفع ضرر از زنده گی خود بارها زنده گی خود را تلف هم میکند. یعنی چیزیکه آنرا انسان دوست دارد، حیات خودش است، حیات را به جان و دل باید دوست داشت و هر چیز را نسبت به آن فدا باید کرد اما یک چیز.

آن چیز چیست که انسان حیات خود را هم فدای آن کند؟

آنهم حیات است تفصیل آنرا بشنوید:
در دنیا دو حیات است:

- حیات شخصی
- حیات ملی

بیا په تفصیل لیکي چې د ملي حیات لپاره شخصي حیات قربانول ملتپالنه او هېوادپالنه وه.

په دې برخه کې د نړۍ د بېلا بېلو ملتونه د شخصي ژوند قربانېدلو له عبرته ډکې نمونې ورکوي او خپلو هېوادوالو ته د ملي ژوند د بقا لپاره د شخصي ژوند د قربانۍ درسونه ورکوي.

ده خپل کار د ملي مسئولیت د لوړ احساس په رڼا کې کاوه، که مقالې ئې خپرولې، که تبصرې ئې خپرولې او که خبرونه به ئې خپرول په ټولو کې به ئې ملي هدف په نظر کې وو.

کله چې دی د ۱۲۹۸کال د وري له پنځلسمې بیا د زمرۍ تر لسمې نېټې پورې په هند کې وو نو چې را ستون شو او د ده په غیاب کې د اخبار چاپ شوي ګڼې ئې وکتلې خوښې ئې نه شوې او معیاري ورته ښکاره نه شوې نو خبره ئې له خپلو لوستونکو سره شریکه کړه او وئې لیکل: په دې وروستیو کې د امان افغان خپروني کمزوري شوي، موږ به هڅه کوو چې دا کمزوري په راتلونکو ګڼو کې له منځه یوسو!

اروابناد استاد داوي د ۱۲۹۹کال د لېندۍ تر نهمې نېټې پورې د امان افغان مدیر وو، بیا د هېواد د سیاسي نماینده یعني سفیر په توګه بخارا ته ولېږل شو او بیا یو وخت په انګلستان کې هم لوی سفیر وو چې سیاسي ماموریتونه ئې بېله څېړنه غواړي.

په دې ترتیب استاد عبدالهادي داوي د هېواد یو لوی هېوادپال، ملي، انقلابي، فداکار او خدمتګار شخصیت وو او په دې لاره کې هري قربانۍ ته حاضر وو او په عاشقانه ډول ئې خپل شخصي ژوند له ملي ژوند نه قربانۍ ته وقف کړی وو او په دې لاره کې ئې ډېر کړاوونه او اوږده جهنمي زندانونه ګاللي خو موږ دا هر څه هېر کړي او یو یاد ئې هم نه شو کولای.

همدا اوس دی د حال په ژبه موږ ته وایي:

زه یې چا لره وهم قدر یې چا زده
په اور وسوځه دا توري قلمونه

د لوی خدای له درباره ئې اروا ښاده او هغه دنیا آباده غواړم!

***

د حاجي محمد رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- دا د ژوند بار نه دئ چې ستا ملا درماتوي بلکې خبره دا ده چې هغه په څه ډول وړې.
- لوړي غونډۍ ته ختل په ورو ورو تګ سره کېږي.
- یوه شمعه د بلې شمعې په روښانه کولو سره هیڅ شی د لاسه نه ورکوي.
- ته کولای سې شکایت وکړې چې ګلان اغزي لري او هم کولای سې خوشحاله اوسې چې اغزي ګلان لري.

***

د تاريخي افغانستان د ولسونو په اړه

# د استاد داوي درسونه




(سرحد و افغانستان) د اروابناد استاد عبدالهادي داوي هغه په بنه وړه، خو په مانا ستره رساله ده، چې د خپلواکۍ د جګړې په بهير کې د ډيورند د کرغيړنې کرښې ورهاخوا ولسونو د مېړانې او سربښندنې يو دقيق او مستند پېښليد ئې ګڼلای شو، دا رساله يوازې د استقلال په دربګونو محاذونو کې د کوزو افغانانو د ګډون انځور نه، بلکي له اوسمهالي افغانستان سره د هغوی د حقوقي، سياسي، فرهنګي او قومي ګډون يو په زړه پوري تحليل هم وړاندې کوي. زه غواړم په دې ليکنه کې د دې رسالې پر درېيو ځانګړنو خبرې وکړم:



څېړندوی عبدالغفور لېوال

لومړۍ: راځئ وګورو، چې استاد داوی له حقوقي – سياسي پلوه د دغو ولسونو د برخليک په اړه څه نظر لري؟

دوهمه: دا رساله غواړي وښيي، چې په لويو او برخليک ټاکونکيو پېښو کې د کرښې دواړه غاړې ولسونه د خپل ګډ برخليک په اړه له خپلو دوديزو ارزښتونو څخه کار اخلي او دا هغه توپاني اوبه دي چې د ښکېلاک په هيڅ

ډانګ نه شي بېلېدلای.

درېیمه او تر ټولو مهمه خبره د نن ده، موږ نن هم د خپلې تاریخي جغرافیې پر سینه پروت د ناسور له دې ټپه ځورېږو، استاد داوي په خپله دې رساله کي د نن او سبا لپاره هم داسي درسونه لري، چي پر دې ملي داعیې ولاړ افغان نسلونه ئې د مشال په توګه تر خپلي مخي نیولی شي. خو تر دې مخکي د رسالې لنډه پېژندنه:

سرحد و افغانستان د خپروونکي (ښاغلي عبدالغفار داوي) په یوه یادښت پیلېږي، تر هغه وروسته د ارواښاد استاد داوي لنډه سریزه راځي، چي خپله رساله راپېژني او یادونه کوي، چي دا رساله د خپلواکۍ د جګړې (۱۲۹۷ – ۱۲۹۸ کلونو ) پېښې رانغاړي، چي د ارواښاد داوي خپل مشاهدات، د افغان لوریو رسمي یادښتونه او د انګریزانو خپلي لیکني او د بریتانیا حکومت ته د هغوی راپورونه یې د سرچینو په توګه کارولي دي. دا رساله یوپنځوس مخه لري، چي د استقلال په درېګونو جبهو کي تر جبري کرښي ورهاخوا قومونو او قبایلو د حماسو او د افغاني جبهې د ملاتړیو جګړې پېښې ځېړل شوي دي. رساله د ۱۳۹۱ لمریز کال په مني کي د عبدالغفار داوي په اهتمام او لګښت په پینځه سوه ټوکه کي خپره شوې ده. که څه هم د رسالې مهتمم یادونه نه ده کړې، چي د رسالې متن ئې څنګه چاپ ته چمتو کړی دئ، خو ښکاري چي دا لیکنه د یوې منظمې رسالې په توګه د لیکوال له خوا بشپړه شوې وي، مانا دا چي خواره واره یادښتونه نه دي، چي په متن کي پخپله ارواښاد استاد داوي خپلي دې لیکنې ته د مقالې نوم ورکړی دئ. په رساله کي په جبهو پوري اړوند تاریخي عکسونه هم شته چي د لیکوال له یادښتونو سره یو ځای د رسالې استنادي ارزښت زیاتوي. د خواشینۍ یوه خبره پکښې دا ده چي د رسالې پروفي ایډیټ په دقت نه دئ تر سره شوی او له قلمي یا اصل نسخې سره سمه نه ده پرتله شوې، د یو شمېر ځایونو، اشخاصو او قومونو په نومونو کي ګڼې تېروتني تر سترګو کېږي، چي هیله ده په بل چاپ کي دې نیمګړتیا ته پام وساتل شي.

خو اوس د استاد درې درسونه:

## د استاد داوي لومړی درس:

استاد داوي د پاکستان له رامنځته کېدو سره د ډیورند د کرښي موجودیت او رسمیت پای ته رسېدلی بولي او د تاریخي افغانستان د جغرافیا اوسېدونکي عملاً سره یو ځای ګڼي، دی پخپله سریزه کي لیکي:

"... ولی افغانان سرحد سایه های روی گردانندہ نبوده اند، بلکه با مصداق یک روح در دو بدن میباشند و به روزهای مشکل با ما شریک و همکار موثر بوده اند، غرض ما از این مقاله نیز در خصوص همین اشتراک عمل و همراهي های بی نظیر آنها (مجملاً) حرف زدن است و برادری های عملی آنها را در اثبات کردن. شک نیست که بعد از برامدن افواج فرنگی از حدود افغان نشین و به میدان آمدن (پاکستان) احوال و شرایط عمومیه تفاوت نهایت زیاد پیدا کرده و مستقبل رانمی توان بر ماضی قیاس کرد ...) ر: ۲ م.

استاد په ټوله رساله کي هر ځل له ډیورند سره د خط اجباري قید خامخا لیکلی دئ، کله ئې هغه منحوسه کرښه ګڼلې ده، په ټوله رساله کي ئې د تاریخي افغانستان اوسېدونکو قومونو او قبایلو ته د افغانانو په نامه یادولو سره ښوولې ده چي له هویتي او حقوقي پلوه افغان ستر ملت په داسي

استعماري او جبري کرښو نه شي سره بېلېدلای. استاد داوی هغه مهال چې د صوبه سرحد يادونه کوي ليکي، چې انګرېزانو هغه مهال دې سيمې ته Administered Line يا Administrated Boundary ويل، دا ښيي چې ان انګرېزانو پخپله هم دې ته د منل شوي سرحد په سترګه نه کتل بلکي دې ته ئې اداري کرښه يا اداري برېد ويل. په حقوقي ادبياتو کې رسمي سرحد او اداري کرښه د ځمکې او اسمان توپير لري او دا هغو اوسمهاليو سياسي حقوقي غلطيو ته مستند ځواب دئ، چې ډيورند د رسمي پولې په نامه يادوي.

**د استاد داوي دوهم درس:**

د تاريخي افغانستان له بدنه د ډيورند په چاره بېل شوي افغانان له خپلو ملي لښکرو او افغاني حکومت سره يو ځای د انګرېزانو په وړاندې جګړې ته راووتل، دوی د هندوستان د ازادۍ له پاره نه جنګېدل، د پاکستان په نامه د کوم هېواد تخيل هم نه وو موجود، دوی ډېر ځوانان له لاسه ورکړل، کلي او کورونه يې وسېځل شول، انګرېزانو ئې پر باندې تالان ګډ کړ، په ډېره بېرحمۍ ئې بمباران کړل، په (بلند خېلو) کې ئې نه يوازې دا چې د کلي ټول اوسېدونکي په بمبار کې ووژل بلکې هغه زړې ښځې چې له وېرې په کاريزونو کې پټې شوې وې هم يوه يوه موندله او وئې وژلې، استاد داوی غواړي دا ځواکمن منطق زموږ مخې ته کښېږدي، چې دا ټول ولې پېښ شول؟ يوازې د انګرېزانو په وړاندې د استقلال په جګړه کې ګډون نه، بلکې دغو اولسونو په ډېره تنده غوښتل چې د ډيورند پر منحوسه کرښه د خپلو وينو د رود په بهولو سره هغه د خپل ملي تاريخ له تندي څخه وتوړي او د يوه لوی، واحد او تاريخي افغانستان په سره يو ځای کولو سره د قربانۍ تر ټولو لويه مظاهره وکړي. استاد داوی پر دې ټينګار کوي، چې د تاريخي افغانستان د بيا يو کولو په دې مظاهره کې (د هغه وخت په اصطلاح يوازې د ياغيستان) يعنې قبايلو يا ټرايبل بېلټ اوسېدونکي افغانان نه، بلکې د انګرېزانو په ژبه د صوبه سرحد، بلوچستان او ان هندوستان مېشتي افغانان د خپل ملي حکومت (يعني اعليحضرت امان الله شاه غازي) او افغاني سپه سالارانو تر شا ودرېدل او انګرېزانو ته ئې مرګونې ګوزارونه ورکړل. راځئ په دې اړه د اروابناد استاد داوي يو مستند مثال ټکي په ټکي راواخلو:

"... خان يارمحمدخان غازي ... که رياست ارثی تمام ملک دين خېلها، بلکه از کل افريدي ها را خاندان او داشت مکتوبی به نام پوليتيکل افسر (مامور سياسی) انګريزی، که دران روزها صاحب زاده عبدالقيوم (غفرالله تعالی) بود، نوشت و در آن بصراحت ذکر کرده بود که؛ چون انګريزها در اين جنګ حق بجانب نيستند و هم چون من مسلمان و افغانم خطاب (خان بهادر) را که حکومت انګريز ی به من داده است پس رد ميکنم و اګر انګريزها مطالبات استقلال افغانستان را تسليم نکنند به غزا اشتراک کرده و مواصلات انګريزها را در دره خيبر محو و نابود می نمايم و چون توهم مسلمان و افغان هستی بايد باقيام مليه همدردی و بدرجهٔ آخرين همراهي کرده وظيفه ايمانی و وجداني خود را ايفا نمايي...".

**د استاد داوي درېيم درس:**

د تاريخي افغانستان د يو کېدو ملي غوښتنه کوم شعار يا سليقوي تمايل او تخيل

نه دئ، ان کومه دولتي پرېکړه هم نه ده، بلکي په سیمه کي د یوه ستر اولس تاریخي برخلیک دئ، چي په وړ شرایطو کي به ئې په خپله ګډه ملي اراده او ویښ عمل سره راخپلوي. دا په تېره بیا د نن ورځي هغو سیاسي سربدالو او پرېشانه پرتو ته ځواب دئ، چي ګومان کوي، د ډیورند جبري او کرکجني کرښي ته د رسمیت په وربښلو به ئې اوسمهالي ستونزي له منځه ولاړي شي او په دې توګه به د یوه لوی اولس تاریخي برخلیک تر ځځلو لاندي ورک کړي، راځئ وګورو په دې اړه پخپله استاد داوي د خپلي یادي رسالي د سریزي په پیل کي څه لیکلي:

"... امروز موضوع افغانان سرحد ورد زبان و درد دل کل افراد ما، و گرمی هرحلقه و هر اجتماع است ولی بعضی ها دل زنی میکنند که بعضی افغان های سرحد الۀ دست اجانب گردیده یا صرف به سایق های نفاستی حرکت میکنند. پس سعی ما برای آزادی و آبادانی آنها در آخر بی ثمر و بیهوده خواهد شد، آنها (وحدت ملیه) رانمی شناسند و ضرورت و احتیاج گردهم جمع شدن و کلمۀ واحده داشتن و انتباه عصری پیدا کردن را حس نکرده اند.

اگر چه سراینده گان این نوحه انگشت شمارند ولی یک نفر هم که دریک محیط خلاف سیاست عمومیۀ ملت حرف بزند لکۀ بدنمایی است. البته این اشخاص تحت تاثیر مرجفین بیگانه و مخالف آمده اند، یا خود در طرز تفکر پر غرابت شان نقصانی موجود است. اگر به فرض محال افغانهای مذکور قدر آن را هم نمی دانند ما باید وظیفۀ خود را نسبت به آنها بدانیم و سعی خود را دریغ نکنیم، چه علاوه بر آنکه به خون و خاک و دین و زبان و ثقافت و مقدرات شریک ما هستند، دایماً برای افغانستان فداکاری ها کرده و تا امروز کرده می روند. بیشتر از صد سال است که بین ما و قوای متجاوزۀ که بی لفافه روش خود تعمیلیه (پر مخ ځو) یعنی فارورد پالیسي نامیده بودند سینه سپر ساخته و جب به جب، قدم به قدم حیات خود مدافع وطن و ملت افغانستان را دایمی وظیفۀ یگانه خود قرار داده بودند، پس بر ما حق دارند که برای خیرخواهی آنها برادروار کمر بسته کنیم و اگر آنها خود جمع شده نمی توانند ما در جمع شدن آنها دور همدیگر سعی نماییم.

دلزنی بعضی افراد متردد، که خوشبختانه اهمیت اجتماعی باموقعیت معتبری ندارند تا یک اندازه بطور اساس الحزم سوء الظن در نظر کسانی اهمیت پیدا میکند که از حقیقت حالات بیخبر باشند ...".

هو دا ده د استاد داوي تاریخي وړاندوینه چي د ډیورند د رسمیت د ډنډورې او په دې اړه له حقیقته ناخبره ګونګوسو په اړه ئې په ښکاره ټکیو کي لیکلې ده، که موږ په ملي او افغاني روحیه رښتیا هم د استاد داوي، د هغه د همزولیو ملي مبارزینو او خپلو فرهنګي - سیاسي مشرانو درناوی کوو، نو نه ښایي د هغوی له داسي ملي غوښتنو او لویو ارادو څخه سترګي پټې کړو یا ئې پر خلاف ودرېږو. زما په نظر د مشرانو او ملي مبارزینو یادول او لمانځل به ښه کار وي، خو د هغوی ارمانونو او غوښتنو ته ځان رسول زموږ د نسلونو ملي فریضه او لوی مکلفیت دئ.

***



استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# پښتو اکبرنامه



اکبرنامه په فارسي ژبه د افغان او انګلیس د لومړي جنګ په جریان کي د غازي محمداکبر خان (۱۲۳۲ - ۱۲۶۳ هـ ق) د مجاهدو منظوم تاریخ دئ چي د کشمیري شاعر حمید نومي له خوا د مثنوي په قالب کي په ۱۲۶۰هـ ق کي ویل سوی ده. دغه منظومه اکبرنامه له فارسي ژبي څخه د پښتو ژبي یوه حقدار شاعر، لیکوال او د دیني علومو ښوونکي ملا جانان کاکړ کندهاري (۱۲۷۵ - ۱۳۶۴هـ ش) په پښتو نظم راا ړولې ده. د دغي ژباړي دروند کار ئې په ۱۳۳۱ش د وري پر نهمه په کندهار کي پای ته رسولی دئ. د پښتو ژباړي قالب ئې هم مثنوي دئ. پښتو اکبرنامه تر ویلو یو کم شپېته کاله وروسته د ښاغلي ډاکټر عبدالرؤف رفیقي په سمونه، څېړنه په ښکلې قطع او صحافت د ډاکټر رفیقي څېړنیز مرکز (کوټه) له خوا چاپ سوې ده. د دغه چاپ په سر کي د پښتو ناظم تر فوټو او فهرست وروسته ډاکټر رفیقي د حمید کشمیري او د هغه د آثارو او دغه راز د اروا ښاد ملا جانان کاکړ د ژوند او آثارو په باب ښه په تفصیل سره آموزنده خبري کړي دي. په پای کي ئې په ۳۷۱مخونو کي اوږده تعلیقات پر لیکلي دي او په هغو کي ئې د اکبرنامې په متن کي راغلي اشخاص او پېښي څېړلي دي. تر تعلیقاتو وروسته ئې په شپږو مخونو کي له متن سره یو شمېر تړلي تاریخي عکسونه راوړي دي او بیا ئې د سرېو او

ځايونو نوملېک وراچولی دئ. په پای کې ئې په انګرېزي ژبه د ډاکټر فضل رحيم مروت په قلم يوه ليکنه پر زيات کړې ده.

د پښتو منظومې ژباړې ټول مخونه ۲۲۹ دي.

د دې کتاب يوه نسخه ما ته د ۲۰۱۱ع کال د اپريل پر لسمه په کندهارکې د ګران مطيع الله جان روهيال له خوا راورسېده. په هغو شپو کې چې زه په کندهار کې وم، د دغه کتاب مطالعه مې شروکړه، خو د بشپړولو کار مې په کاناډا کې سر ته ورساوه. زه د دغې ليکنې له لارې د هغه زيار او مېنود ستاينه

کوم چې ډاکټر رفيقي په دې لار کې ګاللی دئ. زه د دې اثر د څېړنيزي برخې په باب ډېر نه ږغېږم. صرف دا يوه يادونه د مرحوم ملا جانان اخند د ژوندليک په ارتباط ليکم.

په ۱۴مخ کې د ملا جانان مرحوم د ژوندليک په برخه کې راغلي دي: "کله چې په ۱۳۰۰هـ ش کې تجارتي ښوونځی لومړي وار په کندهار کې تاسيس سوه، ...".

د دغه ښوونځي رسمي نوم "مکتب تجار" وو. په دې نامه ئې ځکه باله چې په تاسيس کې ئې د کندهار تجارو (سوداګرو) لوی رول درلود. د مکتب تجار په باب ما (هوتک) پخپل يو اثر (ميرزاعبدالودود هوتک) - ۱۱مخ کې تفصيلي خبري کړي دي. له "تجارتي ښوونځی" څخه لوستونکی داسي اخيسته کوي چې په دې ښوونځي کې ګويا تجارت لوستل کېدی، يا دا ښوونځی د تجارت له پاره تاسيس سوی وو. له دې يادوني څخه مي مراد يوازي او يوازي د مطلب توضيح ده.

ملا جانان اخند دغه اکبرنامه د کندهار د فرقه



- په ۲۲۹مخ کې دا بیت:

پټه خوله شو نور ئې هیڅ نه واهه دم
نه اقـــرار و نه انــکار نه لالــغم

د دوهم نیم بیتي سم شکل ئې:

"نه اقرار و نه انکار نه لا نعم"

لا نَعَم = هو او یه.

## مخففات:

ډاکټر رفیقي د خپلو خبرو په ۲۰ مخ کې ځیني مخففات راوړي دي چې ده "کندهاری اصطلاح" بللې ده. ځیني ئې د اړوند مخ په حاشیو کې تشریح کړي دي. زه به دا څو نور هم پر زیات کړم:

زام = زه چې وایم.

په پنجـاب کې زام کاختي وه د لـرګو
چې قسمت یو وړې شمشان ته د پردو
(۶۷مخ)

زې = زه ئې:

زې ښه پېژنم چې سپی دئ دغه سپی
هــا بدخــویه بد طینـته بـد رګی
(د سریزي ۲۴ مخ)

واخي = واخلي:

عجب نه ده مـــاتې راکـــړه پاچــهي
چې خدای ورکړه له هغه بې څوک واخي
(۶۶مخ)

خداخه = خدای خبر:

د اوبو پر ځای به ویني د زړه خوري
د کارګه تیکی دوډی خداخه لري
(۱۰۶مخ)

دغه راز و ګوری: ۱۱۷مخ.

څې = څه ئې:

هــري خــوا ته چې ته وایې بس رهي یو
څې هغه ځای و څې دا خو بس دستي یو
(۱۶۱مخ)

ګوا = ګویا، ګواکې:

د اسمان پر لوري شوې خوږسکې دودونه
چې دستور و ګوا، تلې او ښکې په رودونه
(۱۷۵مخ)

کلې = کله ئې:

کلې وو اهــــه د ښـــــمن په تبرزین
سر د پښې د آس بې وو پر سر دځین
(۱۸۰مخ)

## د کندهار د لهجې لغتونه، وراشې او اصطلاحات:

دا برخه لغتونه د متن ټول لغتونه نه دي. د هغو له پاره باید یوه بېله رساله ولیکل سي.

البوشاکه = نمونه، نښانه، اثر:

د خالق په فضل دوی مړه د ښمنان کړه
الـــبوشـــاکه بــه بیا نه وه د اعــدا
(۳۶مخ)

کوبی = حباب:

آسمان ستا د صنع سیند ته یو کوبی ده
ســـتا انــوار و ته د لمر تکی تبی ده
(۳۹مخ)

په ۴۳ مخ کې کوبی د "کبی" په شکل راوړه سوی دئ.

کنښناو = کنښناوه:

په وصال کښې داسې کنښناو لوړې خوا ته
چې د قــاب و د قــوسین ځای نه ســو پاته
(۴۳مخ)

څانګې = سوزش، تخنېدل:

دا خــبري چې مې راغــلې په غوږو کې
نو له درده مې سوې څانګې په مغزو کې
(۴۶مخ)

تیک = سیده، نیغ:

چې د طبع شینکی آس و ځغلومه
پر ده ګرد جنګ ئې تیک و د رومه
(۴۷مخ)

سوه (فشار پر وروستی څپه دئ) = د آس د پښې نوک چې په فارسي ئې (سُم)

بولي. جمع ئې (سوې) دي. مغیره حالت ئې (سوو) دئ.

د کابل ښار ټوله ډک سو په غوغا
کړئ پایمال سوو د اسانو هم خورا
(۴۹ مخ)

ککڼ = ککړ:
مګر وو چي هغه ځوان په خوی ډېر ښه
ککڼ نه وو په کینه سره ئې زړه
(۵۰ مخ)

کیها = له ډېره پخوا:
ستا له لاسه هغه ملک له کیها تللی
چي دوه سوکاله تر مخ ده له ما تللی
(۶۴ مخ)

دې لغت ته ئې په حاشیه کي کښلي دي چي "د شاعر مراد د افغانستان یا پخوانۍ اریانا مځکه ده".

رخشند = ریشخند، پسخند:
نه کړي خوند چي په مثال ستا بلبل سری
په رخشند کړي له شهبازه سره غوری
(۶۷ مخ)

چپلاخه = څپېړه، څاپېړه:
یو ئې وواهه پر غوږ په چپلاخه
تر غوږو ئې ماغزه وواته، ول آخه
(۷۶ مخ)

مُنګاري = نوکاري، شوکاري:
چي به غشي په ګوښو وینې کړې داري
زغري وويل څنګه پټي دي مُنګاري
(۷۸ مخ)

دا بیت ما ته سم رانقل سوی نه ایسي.

ګرد، ګرده = ټول:
لاس ئې پرېوله او زخمونې وتړل
په کورو کښې ګرد بېغمه کښېنستل
(۸۱ مخ)

"ګرد" ویی اوس د کوړک په حوزه کي د "ګرد" په شکل ویل کېږي. د (ړ) استعمال ئې ما ته نوی ژبنی انکشاف ایسي. په کندهار کي ئې د "ګرد" یا "ګرده" استعمال عام دئ.

دړدړه = په ځغاسته، په منډه:
هغه څوک چي شوله خلاص په دا جګړه کښې
ټېښتې وکړله د شپې په دړدړه کښې
(۸۲ مخ)

خشکیت، خوشکیت، خوشکه = قهر، پر چا باندي غوسه کېدل:
چي دا یو وار اکبر وار وېده دا حال
له خشکیتې شونډان وچیچل فی الحال
(۸۲ مخ)

له خشکیتې = له خشکیته ئې.

پر خوړه = پر میدان:
داسي وه بې کره ناره پر قلا لوړه
چي لښکر د شاه به شو بېهوښ پر خوړه
(۱۰۳ مخ)

پر سپینه خوړه = پر سپین میدان اصطلاح اوس هم د کندهار په محاوره کي سته.

وله ټول = ورله ټول، سره ور ټول:
بل ئې وواهه په تېغ داسي پر خول
کړ دوه شکله ئې یو شکل وله ټول
(۱۱۱ مخ)

خپه (د لومړي توري په سکون) = د بدن غړي، اعضا:
بله پلا بیا د کابل پهلوانانو
پښې کړې ټینګي خپه شوه مړه د دښمنانو
(۱۱۲ مخ)

نړی = ترچی، عطسه:
لوړي خوا ته دونه دړنه ډېر شوله دودان
پر اووم اسمان ئې نړی وکړ کیوان

غورمساغ = دله، دیوس:
تورکی لغت دئ. اصل ئې قرمساق دئ.
ورته وې ول اې بدبخته غورمساغه
دا مې زړه غواړي چي جوړ دې کړم چماغه

(۱۲۱مخ)

چختاڼ = چیت پیت:
گرفتاره وکاږه ئې په کمند کړئ
په لغتو ئې چختاڼه د سمند کړئ
(۱۳۵مخ)

ډم = ډنډ، حوض:
چې یارانو د شاه نطق مو وارویده
تر پراره لاندې لوی ډم مو ولـیده
(۱۶۱مخ)

وېل = ښکنځل، تر خولې تېرې:
په تېره غشې ئې صورت کړ ورغلبېل
کړه هـډوکې ورمـیده، ویل ئې وېل
(۱۶۸مخ)

خوړسکې = ګاټه‌دود، دوړې:
د اسمان پر لورې شوې خوړسکې دودونه
چې دستورو ګوا، تلې اوښکې په رودونه
(۱۷۵مخ)

کوپ = منډه، ځغستا:
په غرږې سره ئې راوورېو لوی توپ
له هر لورې ګوا قیامت کړله راکـوپ
(۱۸۵مخ)

بغو = بوغارو، چیغو:
نـر و ښځـه له دې بغو په نفرت شـوه
لکه مار باندې مرغان په جمعیت شوه
(۲۱۶مخ)

په خرمندو = خورا ډېر، په پېخر:
په دې ګرد رنځ و سختې و اندېښنو
لا زحمت وربانده وو په خـرمـندو
(۲۱۶مخ)

پوړه (فشار پر وروستې سپوڼ) = مطمئن:
که مې زړه لکه د خلقووای پوړه
نو خبر به مې بل ډول وای تـکړه
(۲۶۲مخ)

**ځیني له استعماله لوېدلي لغتونه:**

- قنطال:

قنطال د روسیې د یو پاچا نوم وو، چې وایي د سکندر معاصر تېر سوی دئ (دهخدا).

د آبنوسو پر کرسـۍ ئې کړه اوړه
لکه وو قنطال د روس خولۍ کړه
(۶۰مخ)

- نه‌پن = نهه‌پونډه توپ:

دوه لښکر وه په توپکو په نه‌پنو
یو له بله وه د لیرې په جنـګونو
(۷۴مخ)

پخواني توپونه د هغو د ګولیو له مخې نومول کېدل. لکه:

شش‌پن = چې ګولۍ ئې شپږ پونډه وزن ولري.

نه پن = چې ګولۍ ئې نهه پونډه وزن ولري.

هژده پن = چې ګولۍ ئې اتلس پونډه وزن ولري.

پخوا په کندهار کې د "اژداپن" لغت د ټولو لویو توپونو له‌پاره کارېدی.

- بلاغون = د نصوارو کډو:

اروېدله مې چې ها کوچنۍ ګـولۍ
وې په مثل بلاغون غوندې شپېلۍ
(۱۸۳مخ)

+++++

د عکسونو په دوهم مخ کې د میر مسجدي خان او وزیر یارمحمد خان عکسونه سره الیش سوي دي. یعني هغه چې مسر مسجدي خان بلل سوی دئ، وزیر یارمحمد خان دئ او کوم چې وزیر یارمحمد خان ښوول سوی دئ، میرمسجدي خان دئ.

محمد معصوم هوتک
آشاوا – کاناډا



څېړندوی شېرشاه رشاد

# پښتو ادبي انجمن د تاریخ په څپو کې

مقدوني سکندر کله چې له یونانه څخه پر کوچنۍ آسیا، مصر او پارس باندي لښکري وبهولې او افغانستان ته پسي راواوښتی نو پسله څو جګړو څخه ئې یوه شپه کاغذ او قلم راواخیستی او خپلي مور ته ئې ولیکله: "... ما تر اوسه په ټولو جګړو کي داسي غښتلي او تر سر تېر جنګیالي نه ول لیدلي لکه د دې سیمي".

یقیناً دې ته ورته اعتراف د ډېرو پردیو او اجنبیو له خولې راوتلی دئ.

خو کاش د دې همت او غیرت ،خلوص او دیانت پر څنګ مو له خپلي ژبي، خپل تاریخ او خپل فرهنګ سره هم څه مینه درلودای، له تاریخ څخه مو زده کړي کړي وای او په سیاست کي مو له تدبیر او درایت څخه کار اخیستلای.

خو په هر تقدیر، زموږ بحث د پښتو ادبي انجمن پر تاریخچه باندي دئ.

پښتو ژبه د هندو اروپایي ژبو په ګروپ کي د څېړونکو او ختیځ پېژندونکو د ځانګړي پاملرني وړ ژبه ده. دا هغه ژبه ده چې د ځینو کلیمو (مورفیمونو) او ږغو (فونیمونو) د موجودیت له اسیته د لرغونو ژبو په څېړنه کي زښته زیاته مرسته کولای سي.

لاسته راغلي اسناد ښیي چې په دوهمه هجري پېړۍ کي د پښتو منظوم ادب ویاړني یا حماسې د اوج پر کرسۍ ناستي وې، په درېیمه هجري پېړۍ کي له عربي څخه لومړۍ څرګنده منظومه ژباړه په لاس کي لرو، په پنځمه هجري پېړۍ کي تر ټولو پخوانۍ لاس ته راغلې قصیده د

تاريخ سوري په حواله شيخ کته متي زى راپېژني. د اوومي هجري پېړۍ په سر کي د سليمان ماکو سابزي ساده او روان پښتو نثر د منثور ادب قوت او سبک راښيي. د دې پېړۍ په دوهمه نيمايي کي د الهي جمال مظاهر او عرفاني افکار د لوى عارف شيخ متي رحمه الله په مناجات کي وينو.

د اتمي هجري پېړۍ په دوهمه نيمايي کي د اکبر زينداوري د غزل او مثنوي پارکي په لاس راځي، په نهمه پېړۍ کي د زرغون خان نورزي ساقي نامه او د لسمي پېړۍ د ارزاني خيشکي الفنامه دا ټول د پښتو ادب د تاداو هغه خښتي دي چي له انفراديته د ادبي ټولنو او انجمنو ښکلي ماڼۍ پر جوړي سوي دي.

د دوولسمي هجري پېړۍ په لومړۍ نيمايي کي د نارنج ماڼۍ ادبي دربار د شاه حسين هوتک په شاهي دربار کي جوړ سو، او په دوهمه نيمايي کي د ستر ټولواک لوى احمدشاه بابا په عصر او هغه ته نژدې پيرمحمدکاکړ او شمس الدين کاکړ شعري دېوانونه درلودل، وکيل الدوله عبدالله خان او د هغه زوى محمدعلم خان ښه خوږه پښتو شاعري کړې ده. د گل محمد مرغزي پښتو شاهنامه لرو.

د ۱۳مي هجري پېړۍ په دوهمه نيمايي کي د هندي سبک په پيروي د سردار مهردل خان مشرقي په کور کي د کندهار ادبستان ادبي ټولنه جوړه سوه، چي پر مشرقي سربېره، ميرزا حنان بارکزى، صديق اخوندزاده هوتک، سردار غلام محمد طرزي، محمداکرم هوتک د دغه سبک پلويان ول.

د امير شېرعلي خان د دوهمي پاچهۍ پر مهال د ملي ژېپالني او خدمت په منظور عسکري القاب او بولۍ، د کابينې د غړو القاب په پښتو سول.

د امير حبيب الله خان په عصر کي پښتو ژبه په تعليمي نصاب کي ورگډه سوه.

د اعليحضرت امان الله شاه غازي د پاچهۍ په څلرم کال (مرکه د پښتو) جوړه سوه. خو سقاوي جهالت او بربريت زموږ هر څه له خاورو سره سم کړل.

د نادرشاه شهيد عصر د بيا رغوني پر لوريوه بريالۍ هڅه وه، د خپل اولس او هيواد تجربو ورښوولې وه او په کراتو ئې دا خبره کوله، چي: "... د بېکاره سړي سر د شيطان کارخانه ده". نو د حالاتو ژور درک او فهم و دې ته اړيوست چي "سره ټول ئې کړه کنټرول ئې کړه" تگلاره خپله کړي.

سوداگران ئې وهڅول چي شرکتونه، فابريکې او بانکونه جوړ کړي.

د روحانيونو او ديني علماوو د رضايت د جلبولو له پاره ئې د آزادو ديني مدرسو جوړولو ته اجازه ورکړه.

ځيني روحاني شخصيتونه، ستر ملاکان، سوداگر ئې ملي شورا او مشرانو جرگې ته دننه ايستل.

شرعي محاکم ئې آزاد کړل.

جمعيت العلماء ئې جوړ کړئ.

د ادباوو، لیکوالانو او شاعرانو د راټولېدو له پاره ئې په کابل، کندهار او هرات کي ادبي انجمنونه جوړ کړل، چي پښتو ادبي انجمن په کندهار کي د ۱۳۱۱ل کال د لېندۍ پر نهمه د هغه مهال د تنظیمه رئیس خدای بخښلي وزیر محمدګل خان مومند په هڅونه، زیار او تلاښ جوړ او مشر ئې ارواښاد محمدعثمان پښتون وټاکل سو. غړي ئې عبدالخالق واسعي، محمداعظم ایازي، حاجي عطامحمد (د محمدابراهیم عطایي پلار)، ملا بهاء الدین ساکزی، حاجي عبدالغفور خروټی، مولوي قیام الدین خادم، محمدګل لګیا (نوري)، عبدالغفور شرر (افتخاري غړی)، محمدنسیم نوري او وروسته محمدنور علم سرکاتبان، ارسلان سلیمي مایاروردګ تحویلدار.

دې انجمن د نائب الحکومه سردار غلام فاروق خان په مادي او معنوي ملاتړ د (مجلس تالیف پښتو) په نامه یوه جرګه ګۍ جوړه کړې وه چي لوی استاد علامه حبیبي، محمدیوسف ایازي، عبدالخالق واسعي، حاجي عبدالغفور خروټی، محمداعظم ایازي او قیام الدین خادم ئې غړي ول.

د انجمن په قلمي همکارانو کي د محمدرفیق حبیبي، مولانا محمدشریف حبیبي، مولوي صالح محمد هوتک، حاجي ولي محمد مخلص، مولوي محمدویس کاکړ، ملا رحمت الله بابا، لالا غلام نبي هوتک، سید حسین سید نومان راغلي دي.

## د انجمن دندې:

- د یوې علمي، ادبي، اجتماعي او تاریخي مجلې خپرېده.
- د پښتو لغاتو راټولونګ.
- د پښتو مطبوع او نامطبوع ادبي کتابونو راټولونګ.
- د ښوونځیو د درسي کتابونو تیارېده په خپله ملي ژبه.
- د ګټورو علمي، فني او تاریخي کتابونو ترجمه او تالیف.
- د ملي کتابتون جوړېده.
- و خپلي ملي ژبي ته د ملت توجه اړول.

## کړې کارونه:

۱. د ۱۳۱۱ل کال د مرغومي پر ۱۵ د پښتو ادبي انجمن د افکارو خپروونکې مجلې (پښتو) لومړۍ ګڼه خپره سوله، د ۱۳۱۴ل کال تر نیمایي پوري په کندهار او تر هغه وروسته تر ۱۳۱۶کاله پوري په کابل کي چاپېدله. عمر ئې پنځه کاله وو.

۲. د تالیف، تصنیف او ترجمې په برخه کي:

- د تعلیمي کتابو لیکنه او ژباړه. د رشیدیې د لومړي او پنځمي ټولګۍ هندسه او حساب، د درېیمي او پنځمي ټولګۍ علم الاشیاء، کلید الصرف، د عربي ادبیاتو تاریخ، د افغانستان

تاریخچه، دینیات، نبوي رساله، د اسلام تاریخ، د نړۍ لنډه جغرافیه، د انبیاوو تاریخ، اخلاق او مدنیه معلومات.

- د محکامو د اسنادو، وثایقو، مکاتبو او تذکرو پښتو کول.
- د پښتو ژبې د زده کړې له پاره د خودآموز، لغت د پښتو، پښتو ښوونکي، معلم پښتو، پښتو خبري آثارو تالیف او خپرېده.
- د علمي کتابو د پښتو کولو په برخه کې: د ترجمان القرآن د فاتحه سوره، د علامه شبلي نعماني الفاروق، حریت اسلام، اصحاب کرام، د پښتو لیک او مراسلات، د اسلام خوږې خبرې، حصون حمیده، د علامه فرید وجدي صفیرالاسلام الی سایر الانام، د سلطان محمود بزم ادب.

۳. د پښتو ادبي آثارو څرک ایستل او راټولونګ، په دې برخه کې د پښتنو ادیبانو، لیکوالانو او شاعرانو پر ژوند او آثارو باندې په پښتو مجله کې لنډې لیکنې، د شمس الدین کاکړ، میرزا حنان بارکزي، او ملا جمعه بارکزي د دېوانو د قلمي نسخو موندنه.

۴. د نادرو لغتو او پښتو متلو راټولونګ.

۵. د نړۍ له نورو اخبارو او جرایدو سره اړیکې، په دې برخه کې (پښتو) مجله د یوې وسیلې په توګه د پېښور د پیغام سرحد جریدې، د لاهور د اخبار سیاست، اخبار تعلیم او فانوس سره رابطه . او د اروپا او امریکا د ځینو لویو علمي او ادبي ټولنو له خوا د پښتو مجلې غوښتنه او ګډون وو. په ۱۳۱۲ل کال کې د هند د لویې وچې لوی اسلامي مفکر او نومیالي شاعر علامه اقبال د پښتو ادبي انجمن له غړو سره په کندهار کې ولیده.

۶. په کندهار کې ئې د مشاعرو د جوړېدو دود بیا راژوندی کئ.

د دې انجمن د خپرونکي (پښتو) مجلې د دوهمې کالیزې په ویاړ د درېیم کال په لومړۍ ګڼه کې د انجمن مشر خدای بخښلي محمدعثمان پښتون و خپلې مورنۍ ژبې پښتو ته د پام اړولو له پاره په ډېر صراحت دربار ته هم خاشې وروړې، په یوه برخه کې کاږي:

"... پارسي ژبه په سبب د درباري آبدارۍ تل د ګټې او درباري عزت وسیله بلل سوې ده، ځکه نو زیاتره خلک هغه ورته کوي، خو د پښتو ژبې ژوند او خپرېده د اوسنۍ زمانې یو قومي احتیاج دئ، چې هیڅوک ئې له ذمه دارۍ څخه ځان نه سي کښلای او په دې باره کې موږ په وارو وارو خپل د بلنې ږغ تر عمومو پښتنو پورې رسولی او خپلې غاړې مو خلاصې کړې دي، ولې دروند خوبی سړی تل په ځنډ ویښېږي...".

دا هغه خاشې وې، چې د کابل د

اداري انحصار ښامار ئې وښوراوه او بيا د ولايتو د تابعيت له پاره ئې پر هر ځه خپل وزر خپور کئ او هر ځه ئې په کابل کي منحصر کړل او د ۱۳۱۴ل کال د زمري پر اوله پښتو ادبي انجمن کابل ته وغوښته سو، پسله يوه کال او ځو مياشتو د کابل له ادبي انجمن سره ګډ سو او د ۱۳۱۶ل کال د غوايي پر اوله پښتو ټولنه ځني جوړه سوه.

راځئ! د دغسي نېکمرغو او نېکنامو ورځو د ياد غونډو پر ځنګ د خپلو متقدمينو پر پله پل کښېږدو او تر هر ځه وړاندي د لوی کندهار د ادباوو، علماوو، ليکوالو او شاعرانو د مرکزيت له پاره يوه ګډه او لويه ادبي ټولنه جوړه کړو، چي له هر ډول سياسي تړاو ځخه خوندي وي او يوازي د خپلي ژبي، خپل فرهنګ او خپلو اسلامي او ملي افتخاراتو د خونديتوب او پرمختګ له پاره ځان ستړی کي (انشاء الله تعالی).

***

د حاجي محمد رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- انسانان هغه ملايکي دي چي يو وزر لري، د دې له پاره چي والوزي بايد يو او بل په غېږ کي سره ونيسي.
- ستر او پياوړي کسان هغه ځوک دي چي د ژوند ډېر ترخه واقعيتونه زغملای سي.

***

استاد احمد صميم:

## تصميم

زه د عجـــز ميکـــده کـــي
د هـــوس لـــه زولنـــو ځـــه
د ګنـــاه پـــښې خلاصـــومه

د اسرارو جـــام پـــه لاس کـــي
د عرفـــان د خـــم و ځنـــګ تـــه
د پرهېـــز شراب چـــښمه

د غـــرور بګـــړی لـــه سره
د شـــهرت خرقـــه لـــه تنـــه
هلتـــه ايـــسته غورځومـــه

د ټګـــی تـــسبې د لاســـه
د فتنـــې کچکـــول لـــه غـــاړي
و راهـــب تـــه ورکومـــه

د جفـــا ګـــوتمی پـــه ګوتـــه
د مريـــي چيلـــه پـــه غـــوږ کـــي
نـــه منمـــه، نـــه منمـــه

د فريـــاد پـــه چلخانـــه کـــي
د دردمنـــو پـــه حلقـــه کـــي
زه صـــميم يـــار ننګومـــه
زه صـــميم يـــار ننګومـــه

۱۳۵۵ - کندهار

استاد احمد صمیم

## غزل

ګلریزه شګوفه سوه الهامونه رالېږي
وړمه د ګلستان ئې پیغامونه رالېږي

نرګس هم زړه د لاسه څخه ورکي سرنګون سو
د سترګو کهربا ئې سوي زړونه رالېږي

د وروځو تېرې توري ئې په نظم دي نیولي
په څه خاموشه ژبه پټ جنګونه رالېږي

هر ځای چي ګل ګلاب وي ښایي هغه چمن زما وي
شبنم ما ته د اوښکو مثالونه رالېږي

مجنون د هوسۍ سترګي مچولې په نازنازه
لیلا هم بې جوابه جوابونه رالېږي

د غم په شیدو سوی پروربنت د عاشقانو
**صمیمه** بلبلان چي فریادونه رالېږي

*****

## پسرلی

نرګس د خوښۍ جام نیولی بیا هر خماري ته
د لبو داغ په میو باندي مینځي میخوران
د غم نقشونه پاک سوه د غمجنو له تندیو
کوتري له خوښۍ کړي پروازونه پر اسمان
د هري چینې زړه پاکه لمن وغوړوله
پر څانګه د امید باندي نخېږي بلبلان
لاسونه بلورین هري ویالې دي غځولي
ځلمی د بغاوت هم آزاد پرې له زندان
**صمیمه** موسیقاري درختي ناځي ځکه ځکه
آزادي سوې له بېري د یخنۍ او د خزان

هنر او ادب

چلوونکی:
وحید سباوون

احمد فاني

## غزل

چي خلک ویښ کړي او سهار سي پښتون
تر څاښته ژوند وکړي، په دار سي پښتون

لکه منار تر شا ئې هیڅوک نه وي
په پښتنو کي چي سردار سي پښتون
پر سر ورخېژي چي ورښيي منزل
و کومو خلکو ته چي لار سي پښتون
چي هر محتاج ئې دروازې ته راسي
تل دي سخي لکه بازار سي پښتون

**احمد فاني** لکه داني د امیل
چي زړونه وپېیي او تار سي پښتون

***

عبدالقیوم مینه وال

## غزل

د غم کیسه زموږ له کلي پرون تله پاته سوه
د کوم ظالم په اشارت د چا په خوله پاته سوه

ما به ملګرو ته نن کړې د ګلابونو کیسې
د زړه خبره مي په زړه کي وه پر زړه پاته سوه
نن له جانان سره هم مل تله بدرګه پر لاري
بلا د وهم ښایي نن تر پرون ښه پاته سوه
زموږ د رنګ کلي کیسه زما په سترګو کي وه
د بم په درز کي نن له سترګو څڅېده پاته سوه
څو مره خوشحال و مه په دا خبره زما د قتل
د ښکلي ژوند د ستر قاتل له خولي لوېده پاته سوه

د ستر خزان د برېګیو قافله وه مخکي
ګني تر موږ هم دا سپرلي ورو ورو راتله پاته سوه

فضل الرحمن علیزی

## غزل

ستا په سترګو کي مي زړه ښکاري جانانه
زما په زړه کي ستا باڼه ښکاري جانانه

ته مي وژنه پروا نه لري خو ارمان چي
د رقیب د لاس چاړه ښکاري جانانه
ته پوښتني لره ورسه خدای دې خیر کي
ټول یاران درپسي مړه ښکاري جانانه
دا ستا مخ ته خو نن ځیر ځیر ګوره ځکه
چي تر ټولو مخو ښه ښکاري جانانه
خدای دي نه کړي له نظره نه سې چیري
ټول خوبونه دي درانه ښکاري جانانه
زما زړه درسره پاکه مینه غواړي
خو بل چا ته به بل څه ښکاري جانانه

چي پر هر طرف نظر کړم سم خوشحاله
ما "**علیزي**" ته پښتانه ښکاري جانانه

## غزل

لکه هوسی لکه غزل سترګي راواړوه
ګرانې نن یو ځل سترګي راواړوه
نه صبرېږي زړه مي خدایزده څه غواړي
بیا ورته په چل سترګي راواړوه
بیا مي زخمي زړه غشي پر سر غواړي
راغی مي اجل سترګي راواړوه
ما ته نوی روح نوی ژوندون راکړي
تا که بیا خندل سترګي راواړوه
کله چي رخصت یو بل نه اخلو موږ
تا که زما منل سترګي راواړوه
ما "**علیزی**" که چیرته ته پخلا غواړې
لاندي تر او ربل سترګي راواړوه

بشیراحمد بشارت

## حمدشریف

چي زرغونې سوې دښتي شاړي دا خو ستا مینه ده
د زړګي سیند سو غاړي غاړي دا خو ستا مینه ده

تنکی غوټۍ د سباوون نغمه په خوب زنګوي
په وینښېدو ئې شبنم ژاړي دا خو ستا مینه ده
د زلزلې په څېر ستا یاد به ئې چپه کړي اخیر
د سر او تن ماڼۍ مې دواړي دا خو ستا مینه ده
لکه ماشوم په څه بانه ئې هسي تېر کړم تر ځان
زړه مې نن بیا تا له ما غواړي دا خو ستا مینه ده
د فکر کب مې د خودۍ په سیند کي ولمبوی
چي بېخودۍ سولې ویجاړي دا خو ستا مینه ده

د قلم ستوني وچ وچ کړي بشارت ته داسي
لکه پکښې چي نه وي ناړي دا خو ستا مینه ده
۱۳۸۹/۲/۸

حاجي غلام نبي سعید

## نعت

نه ښایست وو نه ښکلا وه چي ته نه وې
بدرنګي پر هره خوا وه چي ته نه وې

عالمونه په لمبو کي سوځېدله
جهنم واره دنیا وه چي ته نه وې
غوړېدلی تور څادر د ظلمات وو
ظلم ظلم وو تعدا وه چي ته نه وې
شیطانان به سوه څرګند په قیل و قال کي
سراسر وحشي غوغا وه چي ته نه وې

سترګو سترګو دي څارل د راتلو لاره
زړونه ستا په تمنا وه چي ته نه وې

عطامحمد بیاباني

## مناجات

شفقت دي هر ساعت غواړمه ربه
په عقبا کي مغفرت غواړمه ربه
ملنګي او شاعري مي ده قبوله
په غربت کي قناعت غواړمه ربه
چي زمونږ د ګناهونو بخښنه غواړي
یو خواخوږی د امت غواړمه ربه
د امید کچکول په غاړه ګرځومه
ستا د رحم سخاوت غواړمه ربه
چي مي سترګي ستا له بېري په ژړا سي
بس هم دوغو مره فرصت غواړمه ربه
محبت د آنحضرت ﷺ په زړګي کي
د قرآن په برکت غواړمه ربه
د ابلیس له وسوسو څخه نجات راکې
حقه لار د حقیقت غواړمه ربه
خیر که سمه قرباني دا ستا د میني
"**بیاباني**" یم شهادت غواړمه ربه

تمنا مینه

## غزل

د چنار په شاني دنګه خدای دي راکه
یمه تا پسي ملنګه خدای دي راکه
د مستۍ بږغ دي زما تر غوږو راسه
اې د شنو بنګړیو شرنګه خدای دي راکه
زما د غاړي امېل ځکه دئ نیمګړی
پکښې ته نه یې لونګه خدای دي راکه
څوک به سپین او څوک به تور له خدایه غواړي
زه تا غواړم غنمرنګه خدای دي راکه
بیا په مینه به کړي سترګي را پر سترګو
د جانان د سترګو جنګه خدای دي راکه

حاجي عبدالستار حیراني/میوند

## غزل

خدایه راکړې هسې سترګې په قسمت
چې په وینمه لار د حقیقت

چې د حق او د باطل بېلښت په وکړم
ربه غواړمه هم هسې بصیرت

ځان ته نه غواړمه هغه شوخي سترګي
چې جوړ کړي ئې وي کان د معصیت

زما ملې هغه سترګي کړې د ژوند
چې ژړانده وي په ترس د اخرت

**حیراني** غواړه پناه له هغه سترګو
چې خادمې وي له پاره د شهوت

---

فرشته مرسل

## غزل

زه دې د زړه البوم کې ځای نه لرم
پکښې د نورو تصویرونه پراته
مینې مې ځکه ځنې کډه وکړه
ورکې د نورو وه ویرونه پراته
اوس مې د سترګو په کچکول کې ګورم
که ستا د حسن وي خیرونه پراته
ما مې لمنه د وطن لټول
ډېر پکښې وه پردي سرونه پراته
**فرشتې** داسې خوب لیدی برایې
وه د طاؤس باندې وزرونه پراته

علي محمد احسان

## غزل

چې په زړو کې ئې راکړی پاک ایمان دئ
دا زموږ سره د رب یو لوی احسان دئ
چې ده ښو او بدو لاره پکښې وینو
راستولی ئې و موږ لره قرآن دئ
د تمام جهان ښایسته ئې را اشنا کی
چې په برخه د قسمت مې خوږ جانان دئ
خواري کاږه د فرصت وخت دئ همدغه
پس له مرګه بیا په ژوند پسې ارمان دئ
له دې ښکلو نعمتونو څه عبرت نه کا
ډېر غافله پاته سوی مسلمان دئ
تر خپل دین چې صدقه سمه **احسانه**
بس په ژوند کې مې همدغه ډېر ارمان دی

---

حیات الله سهیم

## غزل

له جنګه سترې یمه نور یو څه آرام غواړم
زما پښتون و ژوند ته هم لږ احترام غواړم
پر ځان ګلاب په کاڼو بولې ما په کاڼو ولې
دا کوم انصاف کوم عدالت دې ته مو پام غواړم
چې دې د دوست په نوم د پښو څه مځکه وتښتوي
د داسې خلګو دوه مخیو ته سلام غواړم
چې خپل نژدې خپلوان مې ژوند ته ورلګیت نیولی
زه به د بل څخه د څه شي انتقام غواړم
چې مې د هوښ څخه ډېر لیري په سفر واستوي
قسمته داسې د مستۍ یو رنګین جام غواړم
**سهیمه** زه یمه انسان خو پر مخ تللی نه یم
پښې راته مه تړئ د تګ لپاره ګام غواړم

هارون خپل شعشعي/لندن

# د قاموس پوهنې په رڼا کې

# د ښاغلي يوسفزي پر پارسي - پښتو قاموس څو خبرې

لومړۍ برخه

څو ورځې مخکې يوه ويښ او زيار کښ افغان - ښاغلي انجينير تېمورشاه يوسفزي له هراته د يوه ايميل يا برېښنا ليک په ترڅ کې د خپل (فارسي- پښتو قاموس) د نقداو شنني غوښتنه وکړه. په دې چې نقد او شننه زما تر صلاحيت لوړ کار وو، په جواب کې مې تر عُذر غوښتلو وروسته، يوازې (د نوي قاموس ليکنې مېتودلوژۍ ته يوه کتنه) ور واستوله. دوې - درې ورځې وروسته يې بل ايميل راولېږی، او په ټينګار سره يې بيا خپله پخوانۍ غوښتنه تکرار کړې وه. د ښاغلي يوسفزي ناز مې پر مځکه نه سوای غورځولای، ځکه مې نو دغه لنډه ليکنه د ناچارۍ له مخې له ده او نورو ځوانو قاموس ليکونکو سره د خپلو ماتو ګوډو نظريو او مشورو د شريکولو په هيله وکړه. خدای دې وکي، چې په لوستلو و ارزي.

د نړۍ ژبې د سياسي، اجتماعي، فرهنګي او اقتصادي دلايلو له مخې يوله بله نژدې او ټينګې اړيکې لري. پښتو ژبه هم د همدغو ځانګړتياوو او دلايلو پر اساس له پارسي، عربي او ځينو هندي الاصله ژبو، په تېره بيا اردو سره ژور او مزبوت تاريخي روابط لري. دې ژورو او څو اړخيزو اړيکو د نورو فرهنګي راکړو ورکړو په لړ کې د ژبنيو قاموسو او لغتنامو د ليکلو او تأليف اړتيا هم منځ ته راوړه. پښتنو ژبپوهانو، اديبانو او شاعرانو هم د همدې ادبي او فرهنګي اړتيا د پوره کولو له پاره له ډېرو اوږدو کلو راهيسې د پښتو، پارسي، عربي، اردو او انګرېزي ژبې د دوو ژبيزو يا څو ژبيزو قاموسو او درسي کتابو و تأليف او ترجمې ته ملاوې وتړلې؛ او تر اوسه پورې په ډېره مينه او ولوله دا علمي - فرهنګي بهير پر مخ بيايي. له نېکه مرغه په پښتو ژبه د دغه راز فرهنګو، لغتنامو او نورو ژبنيو اثارو شمېر تر انده پاس دئ، چې حتا د ټولو د نومو يادونه هم د يوې مقالې تر حوصلې وتلې خبره ده. په دې خاطر نو دلته يوازې د هغو مالومو پښتو - پارسي او پارسي - پښتو قاموسو لنډه يادونه کوو، چې د پښتو قاموس ليکنې په پرمختيايي او بشپړتيايي بهير کې(کي يې) لو (لويه) او ارزښتناکه برخه اخيستې ده.

د تر لاسه سوو مالوماتو له مخې «رياض المحبت» د پښتو - پارسي هغه لومړنی فرهنګ دئ، چې د هندوستان په روهيلکنډ کې د پښتنو د نوميالي واکمن - حافظ رحمت خان برېڅ (۱۱۲۰هـ ق/ ۱۷۰۸ع - ۱۱۸۸هـ ق/ ۱۷۷۴ع) د زوی نواب محبت خان

بریښ (۱۱۶۴هـ ق/ ۱۷۵۰ع - ۱۲۲۳هـ ق/ ۱۸۰۹ع) تألیف دئ؛ او په (۱۲۲۱هـ ق/ ۱۸۰۶ع) کال کې بشپړ سوی دئ. نواب محبت خان بریښ په پارسي، عربي او سنسکریت ژبو کې د خپل وخت لوی استاد وو. په پښتو، پارسي او اردو ژبو شعري دیوانونه لري. «اسرار محبت» او «آمدنامه» هم د هغه له اثارو څخه دي (حبیبي، لوی احمدشاه بابا ۱۱۶-۱۱۷).

له پارسي، عربي او هندي ټکو سره د پښتو دوهم ګډ قاموس «عجایب اللغات» نومېږي، چي په (۱۲۲۴هـ ق/ ۱۸۰۸ع) کال د حافظ رحمت خان بریښ د بل زوی نواب الله یار خان بریښ (۱۷۵۱ - ۱۸۳۲ع) له خوا لیکل سوی دئ. د پښتو - پارسي د دې قاموسو قلمي نسخې د برټیش کتابتون د اسیایي او افریقایي څېړنو په مرکز او د هندوستان په بېلابېلو اختصاصي کتابخانو کي خوندي دي.

دا چي د پښتو لومړني فرهنګونه د روهیلکنډ د دوو بریښ نوابانو له خوا لیکل سوي دي، بې ځایه نه ده، چي دلته د هغو د زړور او منور پلار د ژوند او علمي کارنامو په باب هم څو لنډ ټکي بیان کو.

د نواب محبت خان او نواب الله یار خان پلار - حافظ الملک حافظ رحمت خان بریښ د شاه عالم خان زوی دئ، چي لوی نیکه (شهاب الدین) ئې د کندهار له ښوراوکه تللی او په اټک او لنګرکوټ کي مېشت سوی وو. د توري او قلم دا نومیالی واکمن د احمدشاه بابا له ډېرو وفادارو او تېرونو ملګرو څخه وو. حافظ رحمت خان پر مراني او زړورتیا سربېره عالِم، فاضل او مُدبر شخصیت هم وو. په پښتو ژبه کي د دېوان څښتن دئ. «خلاصة الانساب» او «تواریخ رحمت خاني» ئې نور اثار دي (د بشپړ مالومات له پاره وګورئ:

حبیبي، لوی احمدشاه بابا ۱۱۱- ۱۱۲).

تر «ریاض المحبت» او «عجایب اللغات» ښایسته اوږده کلونه وروسته په (۱۳۱۶ش) کال د ارواښاد وزیر محمد ګل خان (۱۲۶۳ - ۱۳۴۳ش) پښتو - پارسي قاموس، په کابل کي خپور سو، چي «پښتو سیند» نومېږي. وروسته ارواښاد لعل محمد کاکړ او لوی استاد علامه حبیبي (۱۲۸۹ش/ ۱۹۱۰ع - ۱۳۶۳ش/ ۱۹۸۴ع) په (۱۳۱۸ش) کال کي له خورا پراخي او مغتنمي سریزي سره، په کندهار کي د «سپېڅلي پښتو» په نامه خپل پارسي - پښتو قاموس خپور کړ.

پښتو ټولني په (۱۳۳۰ش) کي د پښتو - پارسي بل قاموس په دوو ټوکو کي راوایستی، چي د مخکنیو قاموس له تجربو څخه ئې پراخه ګټه اخیستې وه. تر هغه وروسته په (۱۳۳۵ - ۱۳۳۶ش) کلو کي ارواښاد عبدالله افغاني نویس (په۱۲۷۶ش/ ۱۸۹۷ع کي زېږېدلی) په درو ټوکو کي خپل «افغان قاموس» چاپ کی، چي ډېره برخه عربي او څه برخه پارسي ټکي پکښې را ټول سوي دي؛ او په دوو جلا ستونو کې د دواړو ژبو (پارسي او پښتو) ماناوي اوډل سوي دي. «لغات عامیانۀ فارسی افغانستان» د ارواښاد افغاني نویس بل قاموس دئ، چي د پارسي ژبي و عامیانه ټکو ته ځانګړی سوی دئ. تر «افغان قاموس» وروسته په (۱۳۳۹ش) کال د پښتو ټولني له خوا د ارواښاد عبدالله شاه بدخشي (۱۲۹۰- ۱۳۲۴ش) لهجه یي قاموس چاپ سو، چي «د افغانستان د ځینو ژبو او لهجو قاموس» نومېږي؛ او په اول ټوک کې د اشکاشمي، شغني، سنګلیچي، واخي، مُنجي، پارسي او پښتو ژبو ټکي را غونډ سوي دي؛ خو د دوهم ټوک څرک ئې لا تر اوسه چیري نه دئ لیدل

سوی. دغو او ډېرو نورو قاموس لیکونکو د خپل وخت له شرایطو او ایجاباتو سره سم، د پښتو او پارسي ژبې د زده کړې او رواجولو په لار کې تلپاتې خدمتونه کړي دي، چې هیڅکله به د دې هیواد د ادبي او علمي تاریخ له حافظې هېر نه سي.

د ویاړ او خوښۍ ځای دئ، چې نن ځوان قاموس لیکونکي ښاغلي انجینیر تیمورشاه یوسفزي هم د «فارسي - پښتو قاموس» په لیکلو سره، په دې ستر او ارزښتناک علمي- تحقیقي بهیر ځان ورگډ کړ. هوډ دې غښتلی او همت دې لا لوړ یې (وي)! له نوو او گټورو بدلونو سره د قاموس لیکنې ستونزمن خو په زړه پوري او گټور بهیر ته د ښاغلي یوسفزي ورگډېدل، یو پلا بیا د هغو کسانو پر کاږه استدلال او ناسمو ادعاوو د بطلان کرښه کاږي، چې وایي په ژبپوهنه، لغتپوهنه او داسي نورو علومو کي څه ویل یا څه لیکل، یوازې د تش په نامه اکاډیمیکو پرېړو د خاوندانو حق دئ؛ حال داچې له خپلې ملي ژبې سره مینه او له دې لارې د هیواد د فرهنگي پرمختگ او ملي یووالي او پیوستون په هیله گامونه پورته کول، ټول هغه څه دي، چې په ژبپوهنه، لغتپوهنه، متن پوهنه، لهجه پوهنه او داسي نورو علمي څانگو کي د پوهنتونو و ډیپلومو ته اړتیا نه لري. که په قاموس لیکنه او نورو علمي - ادبي برخو کي د پوهنتوني پرېړو او قوالو په تمه ناست وای، اوس به د پښتو ادب په تاریخ کي د دې گوتو په شمېر اثارو څرک هم نه وای. له بلې خوا که زموږ اوسنیو مسلکي ژبپوهانو او لغتپوهانو د خپل مسلکي رسالت او مسوولیت له مخې په دې برخه کي قلم چلولی وای؛ د خلگو ورځنۍ ستونزې او مشکلات ئې لیرې کړې وای، بیا به ښاغلي یوسفزي او ما غوندې بې ډیپلومه کسانو ته، د دوی په باور، د بې ځایه خولو ټوپولو هیڅ اړتیا نه وای. د همدې دلیل له مخې د ځوان مؤلف ښاغلي یوسفزي علمي او تحقیقي کوښښونه د ډېرې ستاینې او قدردانۍ وړ دي.

انجینیر تیمورشاه یوسفزي په خپل علمي او ادبي ذوق، لوړ استعداد، نه ستړې کېدونکي زیار او کوښښ سره زباد کړې ده، چې کولای سي د پښتو قاموس لیکنې په اوسني علمي او پرمختللي بهیر کې، په زړه پوري ونډه واخلي. د وطن دې دراک او تیاند ځوان ته باید د دې لوی او ارزښتناک علمي او فرهنگي ویاړ له امله، د زړه له کومې مبارکي ووایو. البته، د علمي اثارو، په تېره بیا علمي- تحقیقي قاموسو لیکنه او تألیف په واقعیت کي د یوه یا دوو لیکوالو کار نه دئ؛ ځکه قاموسونه د ژبې له بېلابېلو ټکو، عبارتو او اصطلاحاتو سره سروکار لري، چې هغه هم په خپل وار د هرې ورځې په تېرېدو سره، له رنگارنگ بدلونو او تحولاتو سره مخامخ دي. د نوو او پرمختللو لارو چارو په مرسته د ژبې د دغه راز بدلونو او تغیراتو پرله پسې څېړنه او شننه د دې علمي څانگې له مهمو او اساسي اړتیاوو څخه شمېرل کېږي. دا ټولې خبرې د نورو علومو په شان، په قاموس لیکنه کي د پرله پسې او نه ستړې کېدونکي کار غوښتنه کیي. د ښاغلي یوسفزي د «فارسي - پښتو قاموس» د لا بشپړتیا او د هیواد د قاموس لیکنې په چټک بهیر کي د خپلې ونډې او پورد څه ناڅه ادایني له پاره دا دئ، هغو ټکو ته لنډه اشاره کوم، چې رعایت ئې د نوي او علمي قاموس لیکنې په کار کې بې گټې نه دئ.

- د فونیتیکو تورو او نخښو په مرسته د راټولو سوو ټکو ټرانسکریپشن د اوسنیو قاموسو له خورا مهمو او گټورو ځانگړتیاوو

څخه ګټهل کېږي؛ خو په دغه راز تورو او نخښو کې بېلوالي او څو رنګی د قاموسو و لوستونکو ته لوی جنجال او سرخوږی پېښ کړی دئ. د ښاغلي یوسفزي په قاموس کې د فونیتیکو تورو او نخښو د تشریح له پاره د مثالو وړاندي کول، ډېر په زړه پوري او معقول کار دئ. سره له دې هم د فونیتیکي الفبې په برخه کې باید تر خپله وسه کوښښ وسي، چې د فونیتیکي الفبې توري او نخښې تر ممکنه حده د افغانستان د علومو اکاډیمی یا نورو علمي مؤسسو له منل سوو تورو او نخښو سره نژدې والی ولري؛ مثلاً:

مجهول یا اوږد واو: (o): ګور= Gor

معروف (څرګند یا لنډ) واو په پښتو کې:
(ū) نور (رونا/رڼا، روښنایي)= nūr

معروف واو په پارسي کې: موش (mūš)

نرم یا ساده واو په پارسي او پښتو کې: (w)
وردګ= Wardag

پارسي پېښ یا پښتو واو: (u) اُستاد =
ustād

مجهوله یا اوږده یاء (یای کشیده): (e) شیر
(اسد، غضنفر، زمری)=šer

په پښتو کې معروفه (څرګنده یا لنډه) یاء:
(i) اسیر= asir

په پارسي کې زېر یا کسره: (i) اِمروز=
imroz

سربېره پر دې، په دې قاموس کې و غین او عربي قاف دواړو ته یوه نخښه (ɥ) ټاکل سوې ده. عربي قاف هم د ایرانیانو او هراتیانو د تلفظ له مخې ثبت سوی دئ. دا کار په افغاني قاموس کې ستونزې او مشکلات پېښیي؛ ځکه په افغانستان کې ځیني پارسي وانان عربي قاف د عربانو په څېر وایي، چې د هغه له پاره (q) مناسب توری دئ؛ حال دا چې ځیني ایراني الاصله پارسي وانان او هراتیان عربي قاف د غین په بڼه وایي. په پښتو کې د عربي قاف له پاره (k) او (q) دواړه مناسب ګټهل کېږي. په دې چې ځیني یې د «ک» او ځیني نور ئې د عربي «ق» په بڼه وایي. د افغانستان د علومو اکاډیمي د غین له پاره داسي نخښه کاریي، چې د انګرېزي جي(g) پر سر زموږ د اوو له یوه کوچني عدد سره ورته والی لري: (ğ)

په دې قاموس کې د جیم له پاره له (j + پر سر اووه) نخښې څخه استفاده سوې ده، چې په پښتو فونتیکو نخښو کې د (ǰ) له پاره کارېږي. که د توحید او همرنګی په خاطر دا نخښه په (j) واوړي، لوستونکو ته به اساني ډېره سي. په قاموس کې د واو له پاره د (v) استعمالول هم یوازي د ایراني تلفظ استازیتوب کولای سي. که په ځیر سره وګورو، د افغانستان ټول دري ژبي خلګ واو د ایرانیانو په شان د انګرېزي (v) په بڼه نه، بلکي د انګرېزي (w) په ډول وایي. افغاني پارسي ژبي خلګ هیڅکله وصف، مېوه او داسي نور د (vasf)، (mevə́) په بڼه نه، بلکي د (wəsf)، (mewə́) په ډول ئې وایي. د ایراني او افغاني پارسي تر منځ د بې شماره ټکو په وینګ کې لوی توپیرونه سته، چې قاموس لیکونکي ئې باید په دقت تشخیص او تثبیت کي. دلته د «مشت نمونهٔ خروار» په دود د څو بولګو او مثالو یادونه کوو، چې تلفظ ئې په ایراني او افغاني پارسي (دري) کې فرق لري:

**ایراني پارسي:** بُدو (būdo)، پاشو (pāšo)، پِدر (pidar) تُوبیخ (tubix) دُولت (dulát)، عَراق (Arāğ) ، غَذا (ğ□zā) ګمان (gamān)، سیر (sir) (په معروفه یاء، هغه چا چې پوره خواړه خوړلي

يي، موږ)، شير (šir) (په معروفه ياء، زمری) او داسې نور.

**افغاني پارسي (دري):** بِدو (bidəw)، پَشو(pəšo)، پَدر(pədár)، تَوبيخ (təwbix)، دَولت (dawlát)، عراق/عراغ (Irâq/Irāğ)، غِذا(ğizâ) ، گمان (gūmấn)، سېر (ser) (په مجهوله يا اوږده ياء، هغه چا چې پوره خواړه خوړلي يي، موږ) شېر (šer) (په مجهوله ياء، زمری) او داسې نور.

لغتپوهنه موږ ته راښيي، چې له يوې ژبې څخه بلې ژبې ته د کليمو په تلو راتلو کې ډول ډول سيمانتيکي، مورفالوژيکي او فينالوژيکي بدلونونه پېښيږي. قاموس ليکونکی بايد د کليمو د تلفظ ښوولو له پاره همېشه د هغو خلګو تلفظ په پام کې ونيسي، چې له قاموس څخه کار اخلي. البته، په بېلابېلو لهجو کې د ځينو ټکو د مغيره تلفظو ثبتول هم پر خپل ځای ډېر ګټور کار دئ؛ لکه:
سابقاً سابيقن(sâbíqán) : د افغانستان د زياترو دري ژبو تلفظ .
سابيغن(sâbíğán): د هراتيانو، د افغانستان د ايراني الاصلو پارسي ژبو او ايرانيانو تلفظ.

ايرانيان غيرملفوظه هې (ه)، چې په حقيقت کې نه تلفظ کيږي، د مجهولي «ی» په بڼه وايي؛ لکه: مردې، زندې، شغلې، فريدې او داسې نور. له دې اسيته دغه راز ټکو ته په خپلو فونيتيکو تورو کې د (h) توری هم ورزياتيي؛ حال دا چې په مرده، زنده، شغله، فريده او داسې نورو ټکوکې غيرملفوظه هې (ه) اصلاً هيڅ ږغ نه لري. په دغه راز ټکو کې وروستی ږغ په واقعيت کې هغه زورکی دئ، چې تر غيرملفوظي (ه) مخکې راځي. د دې استدلال له مخې د زورکي له پاره تقريباً په ټولو فونيتيکو الفباوو کې د انګرېزي سرچپه يي (ə) نخښه کاريږي. که د دې قاموس په راتلونکي چاپ کې هم د زورکي له پاره له دغې نخښې څخه کار واخيستل سي، له نورو پښتو قاموسو سره به د فونيتيکو نخښو د توحيد او همرنګۍ په برخه کې مرسته وکي.

– د دې له پاره چې لوستونکي د راغونډو سوو قاموسي سرټکو (headwords) ګرامري نوعيت او جوړښت وپېژني، په اوسنيو قاموسو کې د کلام د اجزاوو (اسم، ضمير، فعل، صفت، قيد او داسې نورو) او ځينو نورو ګرامري خصوصياتو لکه (مذکر، مؤنث، مخنث، مفرد، جمع، فاعل، مفعول او داسې نورو) د پېژندنې په باب لنډ مالومات وړاندې کيږي. هيله من يم ښاغلی يوسفزی هم د خپل قاموس په بل چاپ کې، د مخففو نخښو په بڼه، د راغونډو سوو سرټکو د نوعيت او ځينو نورو ګرامري ځانګړتياوو په باب مالومات هېر نه کي.

– د ځينو عربي، توركي او اروپايي ټکو د پېژندنې له پاره د مخففو نخښو کارول د دې قاموس له لويو ښېګڼو څخه ګڼل کيږي. د افغانستان د علومو اکاډيمۍ پښتو – پښتو تشريحي قاموس پر خپل ټول علمي او تحقيقي ارزښت سربېره، دې اړخ ته هيڅ پام نه دئ کړی. ښاغلی يوسفزی بايد تر دې وروسته کرار کرار د قاموسي سرټکو د ريښې ښوولو پر مسأله هم غوَر وکي؛ مثلاً وښيي، چې د عربي ژبې «صندل » په حقيقت کې د سنسکريت ژبې له «چندن » څخه اخيستل سوی دئ يا په دري او پښتو کې مستعمله کليمه «کيچري/کيچړی » اصلاً د هندي ژبې له « کهچړي » څخه اخيستل سوې ده او داسې نور. که د قاموس ليکنې په کار کې له سرې سينې، تحقيق او پلټنې څخه کار واخيستل

سي، د راغونډو سوو ټکو د ایتیمولوژیکي اړخو ښوول هم څه ګران کار نه دئ.

– د ښاغلي یوسفزي د پارسي – پښتو فرهنګ زیاتره برخه پر نوو ټکو (نیولوجیزم) ولاړه ده. په قاموسوکي د نوو ټکو ثبتول ډېره جنجالي مسأله ده؛ ځکه د دغه راز نوو ټکو ډېره برخه د څو ګوتو په شمېر کسانو د ذهن زېږنده ده؛ له دې کبله په ډېرو مواردو کي پر ژبپوهانو، لغتپوهانو او متن پوهانو سربېره د عامو خلګو ملاتړ هم له ځانه سره نه لري. په بله وینا، دغه راز ټکي د اسانۍ، سادګۍ، پوخوالي، خوږوالي او عاموالي تر ازموینو بریالي نه راوزي. زما په قاصر نظر، په افغاني قاموسو کي باید د نوو ټکو د راټولولو او ثبتولو په کار کي منځنۍ لار غوره سي. له منځنۍ لاري څخه مي مقصد دا دئ، چي یوازي هغه نوي ټکي باید د ژبي په عمومي او معیاري قاموسو کي ثبت سي، چي لغتپوهانو، ژبپوهانو او عامو خلګو په ورځني ژوند کي منلي يي؛ ځکه پوهېږو، چي په قاموسو کي د هر راز نوو ټکو ثبتول د ژبي له بې خونده کولو، پردي کولو او ورانولو سره مرسته کيي. بالعکس د نوو ټکو له راغونډولو څخه یومخیزه تېه هم د قاموس لیکني له طبیعت سره اړخ نه لګیي. په دې چي قاموسونه باید تل د ژبي له نوو بدلونو او پرمختګو سره جوخت د هغو نوو ټکو، عبارتو او اصطلاحاتو و راټولولو او تشریح کولو ته هم ځای ورکيي، چي خلګ ئې د خپل ورځني ژوند په بېلابېلو برخو کي کاريي.

– په قاموسو کي باید د راغونډو سوو ټکو، عبارتو او اصطلاحاتو د مانا او تشریح له پاره تل ساده، اسانه او روښانه ژبه استعمال سي؛ ځکه د ناآشنا، نامأنوسو او خودساخته ټکو په مرسته د قاموسي سرټکو مانا په خپله هم د معما بڼه اخلي. د معما د جوابولو له پاره باید هیڅکله له معما څخه کار وانخیستل سي. پېچلي تعریفونه او ناآشنا ماناوي هیڅکله د لوستونکو مشکل نه حلیي؛ له دې سَوَبه اړوزي، چي د خپلي ورپېښي ستونزي د حلولو له پاره و نورو فرهنګو ته مخ ونیسي. د «سازمان خیریه» له پاره د «ښېګڼېز سازمان» ترجمه سمه نه ده. هیڅوک «ښېګڼېز» نه وایي. دا کلیمه په ویلو کي ډېر ثقلت او ګراني پېښيي. له دې اسیته ئې باید له استعماله ډډه وسي. پر ځای ئې «خیریه ټولنه»، «د خیر ټولنه»، «د ښېګڼي ټولنه» او داسي نور عبارتونه اسانه، خوندور او په زړه پوري دي. موږ ټولو «کڅ» اروېدلی دئ؛ خو «کڅیز» هیڅوک نه پېژني. موږ په پښتوکي زیاتره اوباز (آب باز) او کله کله لامبوزن کاروو؛ خو «لامبوګر» مو هیڅکله نه دئ اروېدلی. ښايي نه یوازي ما، بلکي هیڅ بل پښتانه هم نه يي اروېدلی. موږ له بابا آدمه تر دې دمه «بزګر» وایو، چي اوږده آریایي ریښه لري. تر «بزګر» وروسته «دهقان» هم د تاریخي بدلونو په لړ کي له پېړیو پېړیو راهیسي و پښتني چاپېر ته لار موندلې ده. اوس ځیني پښتانه «بزګر» او ځیني نور «دهقان» وایي. دا دوه ټکي اوس زموږ د لغوي زېرمي اصلي او نه جلاکېدونکي برخه ده. کله چي له پېړیو پېړیو راهیسي «بزګر» او «دهقان» لرو، بیا نو «کرګر» جوړولو ته څه اړتیا وه؟ خلګ نه «لامبوګر» مني او نه «کرګر» ځکه دا دواړي کلیمې د خلګو د اړتیا له مخي نه، بلکي د سوچه پالنې د ناوړه او ورانوونکي ناروغۍ د ارضا په مقصد جوړي سوي دي. قاموس لیکونکی باید هیڅکله د نیولوجیستانو او پیوریستانو د ناوړو بدعتو او کړنو پېښې و نه کي.

د قاموس لیکونکي مسوولیت او رسالت د یوې ژبې د لغوي زیرمې را ټولول؛ او په ساده او اسانه ژبه مانا کول دي او بس. باید په دې روښانه حقیقت سر ښه خلاص کو، هر څونه چې خپل جعلي ټکي د خلګو په سپېڅلې او خوږه ژبه ګډوو، په هغونه اندازه خلګ له خپلې خوږې او سپېڅلې ژبې څخه پردي کوو؛ او نورو ژبو تې(ته یې) د تښتولو لاري او وسیلې برابروو. پښتون ژورنالیست، لیکوال، څېړونکی، ژبپوه او قاموس لیکونکی باید هیڅکله په ژبه کي داسي لاسوهني و نه کي، چي خلګ له پښتو لیک - لوست څخه خواتوری کي. موږ ټول شاهدان یو، چي نن سبا په پښتو کي د «یز» شاوندی یا پسوند خورا په پېڅر کارېږي. لغت جوړونکو که د هري نوي کلیمې د وروستۍ برخي له پاره بل څه پیدا نه کړه، بیا نو هرومرو «یز» ورستاړی ور سره تړي؛ او له دې لاري د چا خبره د پښتو نوي ټکي جوړیږي؛ خو واقعیت دا دئ، چي له هر ټکي سره د «یز» حق و ناحق تړل، پښتو ژبې ته جعلي او غیرطبیعي بڼه ورکیي. خلګ جعلي او تپل سوي شیان نه مني. که د «اجتماعي» له پاره په پښتو کي د «ټولنیز» کلیمه جوړه سوې ده، دا سمه او سهي خبره ده؛ ځکه اجتماعي او ټولنیز دواړه صفتونه (adjectives) دي؛ او دواړه ټکي د مانا او ګرامري نوعیت په لحاظ ورته والی او همرنګي لري؛ مګر د پارسي پیشنهاد (پیش + نهاد) له پاره د (وړاند + یز) کلیمه په ګرامري لحاظ څه نوعیت لري؟ که پښتو «وړاند» د پارسي پیش (په ځینو حالاتو کي قید او په ځینو حالاتو کي پرېپوزیشن) معادل وګڼو، ایا پښتو «یز» د پارسي نهاد (د نهادن له مصدر څخه ماضي فعل) معادل کېدای سي؟ «نهاد» چیري او «یز» چیري؟ ایا «یز» څه مالګه یا دارو دي، چي په هر دېګ کي باید ولوېږي؟ هغه ورځ مي د همدې اختراعاتو په لړ کي «اوړونټکی» ولیدی، چي د انګرېزي ژبې د (turning point) او د پارسي د «نقطهٔ عطف» له پاره ئې جوړ کړی دئ. د «اوړونټکي» جوړونکی په دې نه پوهېږي، چي انګرېزي (turning point) یا پارسي «نقطهٔ عطف» د مانا او مفهوم په لحاظ څه ته ویل کېږي؟ که د دې ترکیبي ټکي په اصلي او اساسي مانا سد رسېدلای، هیڅکله بې په دې بې مانا تحت اللفظي ژباړه پښتو نه خرابولای. په داسي حال کي، چي په پښتو کي له پېړیو پېړیو راهیسي د اوښتون، بدلون، تغیر او تحول ټکي کاروو، نو د «اوړونټکي» جوړولو ته څه اړتیا لیدل کېده؟ پښتانه تل په خپلو خبرو کي وایي: «پلاني فیلسوف، مخترع یا سیاسي مشر په ټولنه کي بدلون راوست یا راوستی». دې ته پښتو نه سو ویلای، چي څوک ووایي: «پلاني فیلسوف، مخترع یا سیاسي مشر په ټولنه کي اوړونټکی را منځ ته کړ». «اوړونټکی را منځ ته کړ» یاني څه؟! ولي باید اسانه او خوږه ژبه په لوی لاس پېچلې او مروړلې کو؟ له همدې سَوَبه ناځایه نه ده، چي داسي ناوړه او بې خونده ایجادات په عامو خلګو کي هیڅکله لار نه سي موندلای.

دا خبره هیڅ دلیل او برهان ته اړتیا نه لري، چي موږ باید هیڅکله د پردو ټکو بېلابیلې برخي یا توري هو په هو و نه ژباړو، بلکي پر ځای ئې په خپله ژبه کي د داسي ټکو پلټنه او ګروېږنه وکو، چي د همغو پردو ټکو ټول مفهوم او مانا په بشپړه، ساده او اسانه بڼه افاده کړای سي. که مو تر پلټني او ګروېږني وروسته مناسبي کلیمې و نه موندلې، بیا به نو د سادګۍ، اسانۍ، خوږوالي، پوخوالي او

عمومیت د اصولو په رڼا کې نوي تکي ورته جوړوو. البته، خپل جوړ کړي تکي به تر خپرولو او رواجولو مخکې د ژبپوهانو، لغتپوهانو، لیکوالو او عامو خلګو و سلا مشورې او نظر پوښتنې ته وړاندې کوو. که چېرې عام و خاص ومنل بیا به ئې و ترویج او تعمیم ته ملاوې تړو. روښانه خبره ده، د هغو نوو تکو له منلو څخه نو هیڅوک تېښته نه کیي، چې په دې ډول میدان ته راوزي. په ډېرې خواشینې سره، په موږ کې ځینې سرزورې خپلو اپلتو ته د قرآن د کرښو په سترګه ګوري؛ او پر دنیا هیچا ته اجازه نه ورکیي، چې پر ناسموالې، نیمګړتیا او بې خوندۍ ئې خبرې وکي. ښاغلی یوسفزی باید په خپل ټول واک او ځواک کوښښ وکي، چې خپله قاموس لیکنه د دغه راز لغت جوړونکو له ناوړو اغېزو خوندي وساتي. دلته د دغه راز ناوړې اغېزې څو مثالونه ښیو : د قاموس په اتم (۸) مخ کې و «آذری» ته کښل سوي دي: اورنی، اوریز. زما خو په «اورني» او «اوریز» سر نه خلاصېږي. نه پوهېږم، چې د نورو لوستونکو به څه حال يي؟ دا خبره سمه اوسهي ده، چې «آذری» د «آذر» له ټکي څخه اخیستل سوی دئ؛ او «آذر» د اور مانا لري. د آذربایجان نوم هم له همدې رېښې څخه راوتلی دئ؛ خو «اورنی» او «اوریز» پر لغوي مانا سربېره د «آذري» ادبي، تاریخي او دیني مفاهیم هم نه سي بیانولای. «اورنی» او «اوریز» حتا د «آذري» ټکي په ټکي ترجمه هم نه سو ګڼلای؛ حال دا چې تحت اللفظي یا ټکی په ټکی ترجمه له لویه سره د کلیمو مفاهیم او ماناوې سمې نه سي تشریح کولای؛ ځکه نو باید په کلکه لاس ځنې واخلو. زما په ګومان اورپالونکی، هغه څوک چې د اور عبادت کیي، اورپرست، آتش پرست، ګبر، زردشتی، د زردشت پیرو، مجوس (عربان آذري ته مجوس وایي)، فارسی (د هند د نیمي وچې خلګ و آذري یا آتش پرست ته فارسي وایي) د «آذری» اصلي او سهي ماناوې دي. په دغه راز ماناوو سره «آذري» کلیمه سمه او اسانه پېژندله کېږي. «مخوریز» کلیمه هم د «آبدار» له پاره مناسبه او موزونه نه ده. مَخَوَر په پښتو کې د متنفذ، بارسوخه، نامتو، پېژندل سوي، معتبر، د برم او پرتم خاوند او داسې نورو په مانا استعمالېږي، چې هیڅکله باید له «یز» ورستاړي سره و نه تړل سي. موږ په جنوب - لوېدیځه لهجه کې«آبداره» د پتمن، عزتمن، باوقاره، ښاغلي، محترم او داسې نورو په مانا استعمالوو. د قاموس لیکونکې وظیفه او رسالت هم دا دئ، چې لوستونکو ته د راغونډو سوو تکو ماناوې په ښه او اسانه لار ور وپېژني. یو ځل بیا وایم، چې قاموس لیکوونکی باید ځان د خپلسرو لغت جوړونکو له شره خوندي وساتي، که نه نو له پښتو څخه به «مبنتو» جوړه کي، چې بې پېریانو او جینانو به بل هیڅوک نه په پوهېږي. کله چې خلګ د یوې ژبې په کلیمو، عبارتو او اصطلاحاتو پوه نه سي له هغې مخ ګرځيي؛ او پر ځای ئې و نورو ژبو ته پناه وړي. نورو ژبو ته د پښتنو اړ ایستنه د پښتو ژبې د مرګ او نابودۍ په مانا ده. تاسي به وګورئ، چې د ایرانیانو کارواژه (فعل)، نام واژه (اسم/ نام)، کارمایه (سرمایه)، رایانه (کمپیوټر)، سه بر (مثلث)، روادید (ویزه)، صدا و سیما (رادیو تلویزون)، موشک (توغندی/ راکیټ)، راهبرد (ستراتیژي)، کاربرد (تاکتیک) او داسي نور چټیات له پارسي ژبې، په تېره بیا دري څخه څه جوړيي؟! جواب ځرګند او روښانه دئ: ناآشنایي، خواتوري، تباهي او بالاخره نابودي. په پخوا زمانو کې

کالینز ډیکشینرۍ تر تعریفو وروسته پوره دادوه او باوري سوم، چي د ارواښاد سلجوقي او ښاغلي نوري تعریفونه زموخته، پېچلي، متضاد او بالاخره ناسم دي؛ حتا ډاکټر عباس آریانپور او ډاکټرمنوچهر آریانپور هم و «اسقراء» ته د «قیاس» په لیکلو سره، د خپل قاموس و لوستونکو ته لوی سرخوږی پېښ کړی دئ. ځینو عربي قاموس لیکونکو د انګرېزي ژبي (deduction) په قیاس او (induction) په استقراء مانا کړی دئ. په پښتو کي وایي: هر څه د مرچو له قراره قیاس که! یاني د مرچو مثال پر شي او هر څه تطبیق که. دلته مرچ د جزء، ځانګړي فرضیې، یا فرعي حکم او هر شي یا هر څه د عمومي قانون یا کلي حُکم مانا لري. په دې ډول نو سړی نتیجه اخیستلای سي، چي قیاس له جزء څخه د ګل استخراج یا استنتاج دئ؛ خو په پښتو او دري کي د «استقراء» ټکی عام استعمال نه لري. د استقراء او قیاس د مانا د روښانولو له پاره د یوه مثال یادونه بې ګټې نه ده.

ټول نېک انسانان د خلګو ښېګڼه غواړي (عمومي قانون/ عمومي قاعده، کلي حُکم، عمومي فرضیه، کبرا قضیه).

احمد هم د خلګو ښېګڼه غواړي (صغرا قضیه، کوچنۍ فرضیه، مشخص یا خاص حُکم).

نتیجه : احمد نېک انسان دئ.

یا: ټول نېک انسانان د خلګو ښېګڼه غواړي (عمومي قانون/عمومي قاعده، کلي حُکم، عمومي فرضیه، کبرا قضیه).

احمد نېک انسان دئ (صغرا قضیه، کوچنۍ فرضیه، مشخص یا خاص حُکم).

نتیجه : احمد هم د خلګو ښېګڼه غواړي.

په دې مثال کي مو وکتل، چي استقراء له ګُلي یا عمومي احکامو څخه د جزیي یا ځانګړي حُکم استخراج ته وایي.

قیاس د «استقراء» پر خلاف له جزیي یا ځانګړي فرضیې څخه د ګُلي یا عمومي فرضیې د را ایستلو یا استخراج په مانا دئ؛ لکه په دې مثال کي:

احمد عقل او شعور لري (صغرا قضیه، کوچنۍ فرضیه، مشخص یا خاص حُکم).

ټول انسانان عقل او شعور لري (عمومي قانون/ عمومي قاعده ، کلي حُکم، عمومي فرضیه ، کبرا قضیه).

نتیجه : احمد انسان دئ. یا په دې بڼه:

احمد انسان دئ. (صغرا قضیه، کوچنۍ فرضیه، مشخص یا خاص حُکم) .

ټول انسانان عقل او شعور لري (عمومي قانون/ عمومي قاعده، کلي حُکم، عمومي فرضیه، کبرا قضیه).

نتیجه : احمد هم عقل او شعور لري.

البته، استقراء او قیاس د فلسفې او منطقو په عِلم کي خورا لوی بحث دئ، چي نه زموږ له ننني لیکني سره خاص اړیکی لري؛ او نې په دې څو جوملو کي سم حق ادا کېدلای سي. دلته یې د یادوني اساسي مقصد دا وو، چي قاموس لیکونکی باید تل د راغونډو سوو سرټکو د مانا او توضیح له پاره له معتبرو او مستندو ماخذو او سرچینو څخه کار واخلي؛ او هیڅکله په خپلو قاموسو کي کمزورو، نیمګړو، متضادو او متناقضو تعریفو ته ځای ورنه کي. هغه قاموس پر عامو خلګو سربېره په علمي او تحقیقي ټولنو کي هم د معتبر او مؤثق ماخذ په توګه کارېږي، چي لیکونکی/لیکونکي ئې د راټولو سوو کیسه په ماناوو او تعریفو کي له مستندو . شه . نوو منابعو څخه کار واخلي.

نور بیا ...



ليکوال: نثار احمد صمد/کاناډا

# پښتانه اصلاً څوک دي؟



بسم الله الرحمن الرحيم - د پښتنو د اصل او نسب په باره کي د ډېر پخوا څخه ډول ډول روايات او نظريات څرګند سوي دي څو چي د نونسمي پېړۍ معروف مستشرق او پښتو پېژندونکي (هنري راورټي) داسي وويل: "د هيڅ قوم د اصل او نسب په باره کي د نظريو اختلاف دومره زيات نه دئ، لکه د پښتنو د اصل او نسب په باره کي چي دئ".

چا پښتانه د هغوی د خپل عنعنوي روايت پر اساس بني اسرائيل بللي او چا بيا قبطيان (فرعوني لړۍ) ګڼلي دي. چا په مغولو ور ګډ کړي او چا د آرمنيانو، تاتاريانو، هپتاليانو او ساکانو په قطار کي درولي دي. چا بيا په عين وخت کي له راجپوتانو، برهمنانو، يونانيانو، ترکانو، عربانو او نورو سره ګډ کړي دي.

خو د پښتنو د اصل او نسب په باره کي تر ټولو عام او بيخي زوړ روايت هغه دئ چي وايي پښتانه بني اسرائيل دي. په دې هکله تر ټولو پخوانی تحريري سند چي دغه روايت پکښې راغلی دئ، هماغه د ابوالفضل (آئين اکبري) دئ، چي په ۱۵۹۷ - ۹۸ کي ليکل سوی دئ. هغه په دې کتاب کي ليکي چي: "پښتانه ځانونه د بني اسرائيلو اولاده بولي" او پسي زياتوي: "پښتانه په دې عقيده دي چي ډېر ليري نيکه ئې چي افغان نومېدی، درې زامن لرل چي هغه سړبن، غرغښت او بټن ول". بل اثر د اخوند درويزه (تذکرة الابرار والاشرار) دئ چي په ۱۶۰۳ - ۱۶۱۳ کي ليکل سوی دئ او داسي وايي: "پښتانه د مهتر يعقوب اولاده ده چي د اسرائيل په نوم يادېږي. د اسرائيلو يو ډېر لوی مشر طالوت

وو. د طالوت څخه دوه زامن پاته سول چي يو ئې آصف نومېدی او بل ئې افغان. د افغانانو طایفه د همدې افغان اولاده ده". درېيم اثر د نعمت الله هروي (تاريخ خان جهان و مخزن افغاني) دئ چي په ۱۶۱۲ - ۱۳ کي ليکل سوی دئ. په دې هکله د مخزن افغاني لنډيز داسي دئ:

"ملک طالوت د اسرائيلو پاچا وو، خو تر مرګ مخکي ئې د سلطنت امور مهتر داؤد ته وروسپارل. دی خپله وروسته له اووه څلوېښت کاله سلطنته په يوه جګړه کي ووژل سو. ملک طالوت دوې ښځي لرلې او د مرګ په وخت کي ئې دواړه اميدواري وې. وروسته له څه مودې د دواړو کره زامن وسول. مهتر داؤد چي د دغو مېرمنو سرپرستي ور پر غاړه وه، د يوې د زوی نوم برخيا کښېښود او د بلي د زوی نوم ارميا. کله چي د برخيا کره زوی وسو د هغه نوم ئې آصف کښېښود او کله چي د ارميا کره زوی وسو د هغه نوم ئې افغنه کښېښود.

تر مهتر داؤد وروسته مهتر سليمان د اسرائيلو پاچا سو. ده د ملک د چارو د نظم او ادارې کار آصف او افغنه ته وروسپاری. د دغو دوو وروڼو په تېره بيا افغنه اولاده چي په شام کي اوسېده دومره زياته سوه چي له حسابه ووته. وروسته د مهتر سليمان له مرګ نه د اسراييلو ورځ بده سوه. بخت نصر شام ونيو، بيت المقدس ئې وران کړ او د آصف او افغنه د اولادې دوه د سر سرې عزيز او دانيال ئې له خپلو پيروانو سره بنديان کړل. بُخت نصر وروسته د اسرائيلو دوولس زره مهم خلک ووژل او پاته ئې د آصف او افغنه سره غور، غزني، کابل، فيروز کوه او د کندهار شاوخوا سيمو ته فرار کړل. د افغنه اولاده په دغو سيمو کي ميشته سوه.

کله چي خالد بن وليد مسلمان سو نو دغو خلکو ته ئې مکتوب وروليږی، د اسلام د پيغمبر د بعثت زېری ئې پر وکړ او د اسلام منلو ته ئې وروبلل. کله چي د افغنه اولادې ته د خالد مکتوب ورسېد، يو شمېر مشران ئې مدينې ته روان سول. په دغو مشرانو کي د بني افغان تر ټولو ستر مشر قيس نومېدی چي د نسب سلسله ئې ملک طالوت او ابراهيم خليل الله ته رسېده. خالد دغه خلک د پيغمبر حضور ته وروستل.

آنحضرت له هر يوه څخه د نوم پوښتنه وکړه. د بني افغان مشر ورته وويل چي د ده نوم قيس دئ. حضرت پيغمبر ورته وويل: قيس عبراني نوم دئ. څرنګه چي موږ عرب يو نو ستا نوم به وروسته له دې عربي او عبدالرشيد وي.

عبدالرشيد د خالد سره يو ځای په يو شمېر جګړو کی په مېړانه وجنګېد او خالد حضرت پيغمبر ته د هغه د مېړانې په باره کي معلومات ورکړل. حضرت پيغمبر عبدالرشيد ته د بټان لقب ورکړ. بټان چی وروسته پټهان سو، هغه تير ته وايي چي بېړۍ پر تکيه وي. حضرت پيغمبر وروسته عبدالرشيد خپل حضور ته وروباله، د خير دعا ئې ورته وکړه او د خپل يو صحابي او يو شمېر انصارو سره ئې بيرته غور ته ولېږی چي په خلکو کي د اسلام تبليغ وکړي. د قيس عبدالرشيد څخه چي په کال ۴۰ هجري کي په اووه اتيا کلنۍ مړ سو، درې زامن پاته سول. يو سړبن، بل بېټنی او بل غرغښت".

خو که موږ او تاسي د احاديثو ټول مشهور کتابونه (لکه صحيح بخاري، صحيح مسلم، جامع ترمذي، سنن ابواؤد، سنن نسايي، ابن ماجه ...) ولولو، هيڅ دغه ډول ادعا يا اشاره نه ده پکښي ذکر سوې او که د

اسلامي تاريخ ټول معتبر آثار وپلټو، هم به هيڅ دغسي ادعا او بېلګه پيدا نه کړو. نو ځکه دا هسي يو روايت، حدس، ګومان او قياس دئ چې هيڅ علمي او تطبيقي اساس نه لري. د رسول الله ﷺ ټول حديثونه، فرمودې او قصې د احاديثو په شپږو معتبرو کتابونو کي راغلي دي چې د قيس پورتنۍ قصه په هيڅ دغو آثارو کي نسته. نو ځکه دا صرف يوه تخيلي ادعا ده.

په هر صورت، تر نعمت الله هروي راوروسته هم ډېرو نورو واقعه نګارانو او هم پخپله پښتنو مؤرخينو لکه افضل خان خټک، حافظ رحمت خان، زردار خان او حتی قاضي عطأ الله خان پښتانه بني اسرائيل بللي دي. خو علمي سند او تاريخي ثبوت نه لري.

خو په غربي مؤلفينو او څېړونکو کي د بنګال د شاهي آسيايي ټولنې رئيس، سر ويليم جونز (۱۷۴۶ - ۱۷۹۴)، لومړنی شخص وو چي د پښتنو د اصل او نسب دغه عنعنوي روايت ته ئې د غربيانو جدي توجه وروا‌ړوله او په يوه يادونه کي ئې وويل چي کېدای سي پښتانه د يهودو له نسله وي.

په ۱۷۸۴ کي يو انګرېز ليکوال، هنري ونسيتارت، سر ويليم جونز ته يو ليک ولېږی او په هغه کي ئې هغه څه ورته وليکل چي نعمت الله هروي ليکلي دي چي مخکي اشاره ورته وسوه. سرويليم جونز هغه عنعنوي روايت نور هم تقويه کړ چي د پښتنو اصل او نسب ئې بنی اسرائيلو ته ورکش کړی وو. د همدغه جونز تر تبصرې وروسته ډېرو غربيانو کوښښ وکړ چې دا ثابته کړي چي افغانان له اصله يهود دي. ورپسې غربي څېړونکی او مؤلف هماغه الګزنډر برنز دئ چي افغانان ئې (برنس) بولي او په ۱۸۴۱ کي د کابل په پاڅون کي د خپل ورور او يو بل همکار سره يو ځای



ووژل سو. برنز په خپل يو کتاب (بخارا ته سفر) کي وليکل چي پښتانه بني اسرائيل دي. بل لوېديځ مؤلف، ويليم مورکرافټ دئ چي په ۱۸۱۹ - ۱۸۲۵ کي د هغه وخت په افغانستان او شاوخوا ملکونو کي ګرځېدلی دئ، پښتانه يهودانو ته ورته بولي. چارلس مېسن (۱۷۲۸ - ۱۷۸۶) يو بل پخوانی انګرېز سياح دئ چي پښتانه ئې په خپله سفرنامه (د مختلفو سفرونو خاطرات) کي اسرائيل بللي دي. يو بل انګرېز چي پښتني سيمي ته تللی او داسي برداشت ئې کړی چي افغانان بيخي د يهودانو غوندي ښکاري، يو پوځي افسر دئ چي جورج روز نومېږي او کتاب ئې (افغانان، لس قبيلې او د شرق سلطانان - ۱۸۵۲) عنوان لري. هغه د افغانانو څېړې د يهودانو بللي دي. او په ټينګار سره وايي چي پښتانه د لسو ورک سوو قبايلو څخه دي او ادعا کوي چي که هغوی په رښتيا هم له اصله يهود نه وای، نو هيڅکله به ئې ځانونه بني اسرائيل نه بلل. بل انګرېز څېړونکی ډاکټر والټر بيليو (۱۸۳۴ - ۱۸۹۲) دئ چي په دور مختلفو آثارو کي ئې پښتانه بني اسرائيل بللي دي. مابعده انګرېز هنري راورټي دئ چي پښتانه د يهودو له نسله بولي، ۱۸۵۴. بل انګرېز مؤرخ جان ملکم (۱۷۶۹ - ۱۸۳۳) دئ چي وايي پښتانه پخپله ځانونه قسماً د مصر قبطيان او قسماً د اسرائيلو نسل بولي خو دی دا نظر او دا روايت ردوي او داسي وايي: "هيڅ داسي کتيبه نه ده پيدا سوې چي دا عقيده تاييد کړي چي پښتانه د يهودانو له نسله دي او د دوی خپله مبهمه عنعنه په داسي يوه موضوع کي د يو ثابت حقيقت په حيث نه سي منل کېدای" (جان ملکم: د فارس تاريخ ، لومړی ټوک، ۵۹۷ مخ).

په هر صورت، پورتنی ادعاوي (چې وايي پښتانه د بني اسرائیلو له نسله دي) يا پر عنعنوي رواياتو بنا سوي دي او يا پر عادي مشاهداتو. اما کومي اصولی او دقيقي څېړني چې د پښتنو د تاريخ، ژبي او اجتماعي خصوصياتو په باره کي د نونسمي پېړۍ د آوايلو را دې خوا ته سوي دي، د هغو په نتيجه کي دا ټول نظريات رد سوي دي. نوي څېړني پښتانه د اصل او نسب په لحاظ آريايان او د هندواروپايي کورنۍ د هغي ستري څانګي غړي بولي چې د هندوآريايي په نوم يادېږي.

لومړنی غربي مؤلف چې د پښتنو د اصل او نسب په باره کي ئې عنعنوي روايات په کلکه رد کړل، منستيوراټ الفنستن (۱۷۷۹ - ۱۸۵۹) دی چې مشهور اثر ئې (د کابل سلطنت بيان) نومېږي او په ۱۸۱۴ کي ئې تأليف کړی دئ. دا کتاب د پښتني ټولني د اصولي مطالعې په برخه کي داسي دقيق او نفيس اثر دئ چې تر اوسه ئې ساری نه دئ ليکل سوی. دی ليکي چې د پښتنو اصل او نسب چې بني اسرائيلو ته راجع کېږي، د بطلان دليل ئې په خپله په همدې روايت کي پروت دئ، ځکه دا روايت ساول (ملکِ طالوت) د ابراهيم پيغمبر پنځه څلوېښتم پښت ګڼي. خو د دې دوو ټکو څخه اول ئې د تورات سره قطعاً ارخ نه لګوي او دوهم ټکې ئې منطق نه مني. ځکه يوازي اووه دېرش پښته شپاړس سوه کاله نه کېږي.

اما کوم غربي مؤلف چې د پښتنو د اصل او نسب په باره کي په لومړی ځل ډېره وسيعه او دقيقه اصولي څېړنه وکړه او د پښتنو د يهودي بللو روايت ئې سخت رد کړ، هماغه لوی مستشرق او د بشري علومو مشهور جرمن عالم برنارډ ډورن (۱۸۰۵ - ۱۸۸۱) دئ. ډورن د خپل علمي ژوند يوه لويه برخه د پښتنو د ژبي او تاريخ مطالعې ته وقف کړې ده. نوموړي د خپلو ډېرو نورو کارونو تر څنګ د خواجه نعمت الله هروي (تاريخ خان جهاني و مخزن افغاني) په انګرېزي ترجمه کړی او په ۱۸۳۶ کي ئې په لندن کي چاپ کړی دئ. ده پر دې ترجمه يو لږ ډېر پاخه او ارزښتناکه يادابښتونه ليکلي او د کتاب سره ئې ضميمه کړي دي چې په يوه برخه کي ئې داسي ليکي: "دا چې د فارسي ژبي مؤرخين پښتانه د يهودو له نسله ګڼي، دا پرته له يوې خبري څخه د کوم بل شي ثبوت نه سي کېدای او هغه دا چې دغه ليکوالان روايات، پرته له دې چې ماهيت ئې معلوم کړي، د خپل دود پر اساس، د مسلمو حقايقو په توګه ثبتوي". (د افغانانو تاريخ، يادابښتونه، ۱۸۳۶، لندن، ۶۵ مخ). ډورن وړاندي ځي او د هغو ټولو مؤلفينو نظريات او روايات علماً او منطقاً ردوي چې وايي پښتانه د يهودو له نسله دي او دې نتيجې ته رسېږي چې پښتانه د هندو اروپايي اولسونو د ستري کورنۍ غړي دي خو په عين وخت کي ئې يو ځانته لرغونی اولس ګڼي.

په معاصر وخت کي پوهانو د يو اولس د اصل او نسب د معلومولو يوه ښه لار د هغه اولس د ژبي د اصل او ريښې د ماهيت څرګندول ګڼلي دي او د پښتو ژبي په باره کي هم په دې ارتباط کافي څېړني سوي دي چې له مخي ئې هغه د سامي او عبراني ژبو سره تقريباً هيڅ او برعکس د هندي - آريايي او سنسکريت ژبي سره اساسي تړاو ثابت سوی دئ.

اوس به مسئله له بلي زاويې څخه هم وشنو، يعني يو څه به شا ته ولاړ سو او د پښتو ژبي تړاو به د سامي ژبو (خصوصاً عبراني او عربي) سره وڅېړو. په لرغونو زمانو کي د

آریایي او سامي مدنیت روابط څه نا څه
موجود ول. عربو مؤرخینو هم له پخوانۍ
زمانې څخه د بني اسرائیلو خروج د خراسان پر
خواوو ذکر کړی دئ او دا ئې راوړي دي چې د
یهودو ځیني ډلي پر دې خواوو آبادي وې
(معجم البلدان، ابوالفداد). که موږ د
جغرافیې پخواني کتب وپلټو همداسي
ښکاري چې د اسلام په لومړۍ دوره کي په
بلخ، هرات او نورو ښارونو کي ځیني یهود
اوسېدل. مثلاً حدود العالم (د ۳۷۲ هجري
قمري کال تألیف) د ګوزګانان مرکز او
پایتخت (یهودان) بولي، او وایي چي په
ګوزګانان (اوسني جوزجان) کي د عربو ځیني
ډلي هم اوسېدلې چي پوونده ول او د خراسان
تر نورو عربو دوی سره پاشلي پراته ول.

د دغو تاریخي دلایلو څخه دا ویلای
سو چي د آمو په جنوبي ورشوګانو او د
ګوزګانان او خراسان په حدودو کي د اسلام تر
ختو پوري لا هم یهود او عرب یعني سامي
خلک موجود ول. دا خو طبیعي خبره ده چي د
دوو قومونو ګډون او نژدې والي د دوی پر
ژبو او اخلاقو یو له بله اثر کوي. نو ښایي چي
د همدغه اثر نتیجه وي چي په پښتو ځیني
عبري یا عربي لغات ګډ سوي وي او له دغه
کیفیته ځیني خلک په دې فکر کي لوېدلي وي
چي پښتو هم عبري یا عربي ته ورته سامي ژبه
ده.

مګر وروسته چي د اروپا محقق پوهان
راغلل، دا ژبه او د دې ژبي قواعد او اصول ئې
په علمي معیار وکتل، نو دوی په ښکاره د
پښتو د سامي توب نظریه افسانه وګڼله او د
پښتنو تعلق ئې د بني اسرائیلو سره خورا لیري
وباله.

د اوسني تاریخ اساس پر مشاهداتو او
څرګندو دلایلو ایښو کېږي او سړی نه سي
کولای چي د تشو اقوالو په تاریخي پلټنو کي
د ځان ویسا وکړي، البته که روایات او
عنعنات د مشاهداتو سره مرستي سي، نو هغه
تاریخي خبره به خورا ټینګه وي. په اوسنیو
علمي اساسونو کي چي د تاریخ له پاره خورا
اهمیت لري، د ژبو مقایسه او پرتله کول دي. د
کومو قومو ژبي چي سره ورته وي، سړی حُکم
کولای سي چي دوی هم سره خپل او سره نژدې
دي.

پښتو معلومه ده چي ډیرو آریایي ژبو او
زند او سنسکریت ته ورته ده. د آریایي ژبو
سره عنصري او اساسي ګډون او اشتراک
لري. سامي ژبو ته نه د قواعدو، نه د لغاتو او
محاورو له خوا ورته ده، نو ځکه پوهانو د
پښتو د سامي توب نظریه نه ده منلې.

دا چي د پښتو او عبري ځینی لغتونه
سره مشابه دي (لکه غر، غور = ګور، جمع ئې
ګورم، ویشلې = شلح...) مګر که موږ په غور
او ځیر وګورو کټ مټ همدا کلمات په اویستا
او سنسکریت کي هم سته. نو که موږ دا خبره
ومنو چي د عبري ژبي ځیني کلمات د آریایي
پخوانیو ژبو سره ورته دي، نو باید آریایي ژبي
هم له سامي کورنۍ څخه وګڼو؟! خو دا خبره د
علم او تحقیق له مقیاسه ډېره لیري ده. ښه،
اوس نو سړی ویلای سي چي غر، غرڅه،
غلجی، غرستان ټول آریایي دي. که په عبري
ژبه کي (ګور) وي، وي دي، هر شی خپل نژدې
ته راجع کېږي، نه لیری ته. بل لغت هم (اور)
دئ چي په پښتو کي اور (یعني آتش) بلل
کېږي، په کلداني ژبه هم هغه ته اور وایي خو
په عبري ژبه بیا اور (نور، رونا، روښنایي) ته
وایي چي لږ پښتو ته ورته ښکاري مګر دا کوم
بنستیز تړاو نه دئ چي له مخي ئې عبراني او
پښتو د عین ټبر ژبي وبولو.

ځکه نو د پښتو لغاتو او کلماتو نښلول په سامي ژبو پوري کوم علمي اساس نه لري. او فقط دا فکر د بني اسرائيلو او سامي کهولو له نژدې هستوګني او ګاونډيتوب څخه پښتو ته پيدا سوی دئ.

دلته بايد دا خبره هم په لنډ ډول ذکر سي چي له پخوانو زمانو څخه د هند له خوا د اقوامو روابط د سامي اقوامو سره جاري ول. د سند په اوسنۍ علاقه کي د (موهنجو ديرو) کشفيات دا ښيي چي شپږ زره کاله دمخه يو مشترک مدنيت له دې ځايه تر بابل او آشوره موجود وو. وروسته چي آريايي اقوام پر هند مسلط سول، نو د دوی تجارتي او د تګ راتګ روابط هم طبيعي دي، په دې تعامل او ارتباط کي ضرور ژبي هم يو پر بل باندي اثر کوي، لغات او کلمات ئې هم يو له بله اخيستل کېږي او سره ګډېږي. مثلاً موږ ډېر سوچه او لغړ آريايي د سنسکريت لغات وينو چي په عربي ژبه کي هم کټ مټ سته، او دا ليري نه ده چي دغه لغات په تجارتي او اجتماعي تعامل کي له هنده عربو ته تللي وي، يا ځيني لغات له عربي څخه هند ته راغلي وي. د مثال په توګه د (اپت) پښتو کلمه وګورئ! عربي آفت جمع ئې آفات مستعمله ژوندۍ کلمه ده، چي په سنسکريت کي هم عيناً اپت يا اپتي د فاجعې، بدبختۍ، پرېشانۍ او خفت او رسواتوب په معنی ده. په پښتو کي هم دغه کلمه په همدغو معناوو کټ مټ ژوندۍ ده لکه په دې لنډيو کي:

لکه شين کښت دړليو زمول کړم
راباندی راغله له آسمانه اپتونه

د وير اپت راباندي راغی
په بېلتانه کي د زړهويني تويومه

ځکه چي سنسکريت ژبه پښتو ته خورا نژدې ده، نو دلته موږ دا ويلای سو چي اپت هم آريايي کلمه ده او پښتو او سنسکريت له عربي څخه نه ده اخيستې.

نو که داسي کلمات ومومو چي اوس هم په پښتو کي وي، هم په عربي او په نورو آريايي ژبو، سنسکريت او زند کي هم وي، دلته نو موږ په ټينګه ويلای سو چي هغه کلمې آريايي دي او د سامي ژبو څخه نه دي راغلي، بلکي ښايي چي له آريايي ژبو څخه سامي ژبو ته نقل سوي وي او دا خبره دليل هم نه ګرزي دې ته چي موږ دې پښتو له سامي کهوله وبولو.

هر څه بايد په تاريخي او لغوي پلټنو کي ولټول سي او پسي معلوم او ثابت سي. سامي ژبي پخوانو متمدينو قومونو لکه بابل، آشور، فنيقه ويلې. سامي ژبي دا ډولونه لري:

الف – آرامي: د بابل زړه ژبه ده چي سرياني او کلداني ئې څانګي دي.

ب – عبراني: چي تورات په دې ژبه دئ. اسرائيليانو آرامي او کلداني سره ګډه کړه.

ج – عربي: په سامي ژبو کي خورا ښه او مشهوره ژبه ده چي عربي ملتونه ئې وايي او د اسلام او قرآن مقدسه ژبه بلله کېږي. حبشي او سوماليايي ژبي هم د عربي څانګي دي.

په عمومي ډول ژبي د اداينې له پلوه پر دوو برخو وېشل کېږي چي ثابتي او اوښتونکي دي. ثابتي هغه ژبي دي چي د اوښتلو او اشتقاق وړتيا نه لري لکه چينايي، او د ليري ختيځ ژبي او هم د لاتيني امريکې د بومي خلکو ژبي.

اوښتونکي (متصرفه) ژبي هغه دي چي د تصريف او اړولو او اشتقاق قابليت ولري، په کلماتو پوري دمخه هم ملحقات نښلي او وروسته هم (يعنی پري فيکسس او

سفيکسس يا مختاړي او روستاړي).
اوښتونکي ژبې دوې څانګې لري:

لومړی – آريايي ژبې دي؛ چې زموږ د وطن اريايي نسل خبري پې کوي. هر ځای چې زموږ له خاورو څخه آريايان تللي دي د دوی ژبو ته آريايي وايو، او اروپايان (هندو اروپايي) هم ورته وايي. دا ژبې شمالي او جنوبي څانګې لري. شمالي ئې د اروپا آريايي ژبې دي لکه: لاتيني، يوناني، سلتي، سلاوي، تيوتونيک. جنوبي ئې د آسيا آريايي ژبې دي لکه سنسکريت، زند، پښتو، پاړسو.

دوهم – سامي ژبې چې پورته وويل سوې.

بايد ووايو چې د اصلي او لرغوني آريايي ژبې کوم اثر او نخښه اوس نه ده پاته. خو پښتو د هغې سره نژدې والی لري. لکه سنسکريت او اويستا چې ځني زيږېدلي دي، پښتو هم د هغې ژبې لور ده.

فلهذا، پښتو د هندو اروپايي يعني آريايي ژبو څخه ده. ځکه چې د آريايي پښت زانګو دغه زموږ د هيواد مځکې دي. نو اصلي آريايي ژبه هم دلې ويله کېده، او دلې په خپله پاته ده، يا ئې لور پښتو تر اوسه په دغو غرونو کې ژوندۍ ده.

بل خوا، که سړی د مارګنسترن نظريه ومني او پښتو د ساکا يوه لهجه وګڼي، نو معنی به ئې دا وي چې پښتو لږ تر لږه دوه زره کاله پخوا معموله وه. ځکه د ساکانو مشران تر ميلاد تقريباً سل کاله دمخه يعني د ۹۷ قبل الميلاد په شاوخوا کې، په ننني پښتونخوا کې مسلط سول او په پنځم ميلادي کال کې ئې سلطه پای ته ورسېده او په دې پسې ئې ژبه هم لادرکه سوه. اوس سوال دا دئ چې پښتو او (ساکا) خو، اساساً د ايراني ژبو په شرقي ډله پوري مربوطي ډلي دي، نو پښتو دا دومره قوي د هندي ژبو خصوصيات له کومه کړل؟

دا سوال دوه احتمالي ځوابونه لرلای سي: يو دا چې پښتو له اصله يوه ايراني ژبه وه او د هندي ژبو ډېر زيات عناصر، لکه څنګه چې ډارمستېټر او نور وايي، وروسته ورداخل سوي دي. بل دا چې پښتو له اوله سر داسي يوه ژبه وه چې هم ئې د هندي ژبو خصوصيات لرل او هم د ايراني ژبو. راځئ چې لومړی دا اول احتمال وڅېړو: د يو قوم ژبې ته د يو بل قوم د ژبې په ډېره وسيعه پيمانه خصوصيات، معمولاً، هغه وخت ورداخلېدلای سي چې لومړی قوم د دوهم قوم تر ډېري قوي او اوږدې سياسي او ثقافتي سلطې لاندي راغلی وي. خو تاريخ شاهد دئ چې د پښتنو ملک په اسلامي عصر کي هيڅکله هم د هندوستان تر دغه راز سلطې لاندي نه دئ راغلی، بلکي په دې دوره کي ډېر ځله هندوستان د افغانانو او پښتنو تر سياسي سلطې لاندي راغلی او اساساً همدا کار په هند کي د اسلام او اسلامي ثقافت د خپرېدو سبب ګرځېدلی دئ. اما تر اسلام وړاندي داسي يوه دوره تېره سوې ده چې په هغې کي د پښتنو ملک د هندوستان تر يوې قوي او طولاني سياسي او ثقافتي سلطې لاندي راغلی وو. دا دوره د موريا د کورنۍ د واکدارۍ عصر دئ چې د چندراګوپتا د واکدارۍ له سر څخه (۳۲۳ قبل الميلاد) پيل سوی او د آشوکا په مرګ (۲۲۷ ق.م) پای ته رسېدلی دئ او نږدې سل کاله ئې دوام کړی دئ. په واقعيت کي همدا يوازينۍ دوره ده چې کېدای سي پښتو ته د هندي ژبو خصوصيات په دومره وسعت او قوت ورننوتي وي او که دا خبره همداسي وي، نو پښتو به لږ تر لږه دوه نيم زره کلنه او حتی تر هغه هم زړه ژبه وي. اما کله که سړی هغه اول احتمال ومني او داسي وګڼي چې په پښتو کي

د هندي او ايراني ژبو خصوصيات آن د اول سر څخه موجود ول، هلته نو بيا د ترومپ نظريه تقويه کېږي او پښتو د هندي او ايراني ژبو تر منځ يوه ډېره لرغونې د اتصال کړۍ يا په بل عبارت د دغو دوو کورنيو د يو شمېر ژبو د انشعاب منشأ ګرځي.

که مسأله د خپل تل څخه وڅېړو، نو د يو تريخ واقعيت په توګه به ووينو چې په يو زيات شمېر معتبرو پخوانيو تأليفاتو او تاريخونو کي داسي مطالب ليکل سوي او بيا په تواتر په نورو پخوانيو آثارو کي داخل سوي او په نهايت کي ئې ځينو معاصرو تحقيقي څېړنو ته لاره پيدا کړې ده چي اساساً خيالي او افسانوي ماهيت لري او د واقعيتونو سره اړخ نه لګوي. د دې خبري يو ډېر لوی دليل دا دئ چي يو پخواني مؤلف هر څه ليکلي دي، ځينو نورو پخوانيو مؤلفينو په پټو سترګو رانقل کړي دي او وروسته بيا معاصرو آثارو ته هم ور داخل سوي دي. په پخوانيو ځينو تاريخونو او آثارو کي رښتيا هم ډېر زيات داسي خيالي او جعلي روايتونه او خام مطالب راغلي دي چي يو ئې هم د اصولي کره کتني او منطقي استدلال تاب نه لري. يو مثال د پښتنو په باره کي د افغنه او قيس عبدالرشيد افسانه او د هغې پر اساس باندي د پښتنو د نسب جوړه سوې شجره ده، چي هم د منطقې پخواني او ځيني اوسني تاريخونه په ډک دي، او هم په پښتنو کي له ډېر پخوا څخه په شفاهي ډول رايجه سوې ده. خو که دا او داسي ډېر نور د پخوانيو تاريخونو او آثارو مطالب د اصولي اجتماعي او تاريخي کره کتني د معيارونو پر اساس وڅېړل سي نو يقين دئ چي واقعي اړخ به ئې پر افسانوي اړخ دومره غالب سي چي دا ټول روايت به باد يوسي.

په هر حال، علمي تتبعاتو ثابته کړې ده چي پښتانه آريايان دي او لرغونی ټاټوبی ئې (آريانا ويجه) ده. هغوی نه د فلسطين مهاجر دي او نه د بني اسرائيلو اولاده. د بني اسرائيلو له ذاته د هغوی بلل صرف پر احتمالاتو، حدسياتو، قياساتو او تشو ګومانو باندي ولاړ دي، ځکه:

لومړی: په ټول افغانستان او پښتونخوا کي هيڅ کومه کتيبه نه ده پيدا سوې چي پښتانه د بني اسرائيلو نسل وښيي، حال دا چي د آريايي توب سره ئې د اتصال په لسګونو ډبرليکونه ميندل سوي دي (مثلاً د کندهار منډيګک، د سِند موهنجو ديرو...).

دوهم: په غور، غزني، کابل، فيروز کوه او د کندهار په شاوخوا سيمو کي تر ننه هم کوم لرغونی کنيسه (يهودي معبد) نه دئ کشف سوی لکه نعمت الله هروي چي وايي د ننني پښتنو بني اسرائيلي اجداد همدغو سيمو ته راغلل او آباد سول. که په کابل او هرات کي کومې دوې درې کنيسې موجودې وې، د هغو سابقه يوازي سلو کالو ته رسېده (دا کنيسې د هغو يهودي مهاجرو وې چي د فلسطين څخه راغلي ول، خو په ۱۹۴۸ کي هلته د اسرائيلي دولت تر استقرار وروسته بيرته ولاړل). هغوی د لومړۍ ورځی څخه يهود او دين ئې موسوي وو نه پښتانه ول، نه بل څه.

درېيم: په هيڅ اسلامي تاريخ، په هيڅ نبوي حديث او هيڅ اسلامي معتبر اثر کي د بني اسرائيلو سره د پښتنو د نسلي تړاو يادونه او ذکر نسته (لکه پورته چي مو د نعمت الله هروي نقل اقتباس کړ).

څلورم: د پښتنو ژبه (پښتو) چي ډېره لرغونې يعني دوه نيم زره کلنه ده هيڅ د جوړښت، ګرامر، لغتو او لهجې له مخي د

عبري (يعني بني اسرائيلو د ژبي) سره ورته والی او پيوند نه لري بلکي د آريايي ژبو سره د تړاو په سلګونو مضبوط مثالونه لري.

پنځم: د پښتنو د بني اسرائيلي بللو ادعا له ابتدا څخه د (روايت او ګومان) څخه راپيل سوې ده چي هماغه د ابوالفضل انګېرنه ده چي وايي: "پښتانه ځانونه د بني اسرائيلو اولاده بولي ... پښتانه په دې عقيده دي چي ډېر ليري نيکه ئې چي افغان نومېدی، درې زامن ئې لرل چي هغه سړبن، غرغښت او بټن ول". په دې ادعا کي هيڅ کره سند، ثبوت، دليل او اساس نسته بلکي د نن ورځی په حساب د يوې آوازې را انتقالول دي چي مابعده مؤلفينو پسي تکرار کړي دي.

شپږم: مهمه دا چي بني اسرائيل د تاريخ په ټولو دورو کي (که په فلسطين کي ول او که شړل سوي ول) هيڅکله ډېر نه دي بې اتفاقه سوي، خو پښتانه بيا هيڅکله ډېر نه دي متفق سوي! دا څنګه د ويني د تړاو خصوصيت دئ چي داسی ژر برعکس سو؟

په هر صورت، د پښتنو شجره تر سړبن، غرغښت او بيټني پورته چا ته علماً معلومه نه ده او نه هم تر ننه علماً ثابته سوې ده. بلکي ها خوا ته چي هر څه ويل کېږي، صرف ګوماني، تخميني او افسانوي ماهيت لري. يو پخواني مؤلف چي هر څه ليکلي وي، ځينو نورو پخوانيو مؤلفينو په پټو سترګو رانقل کړي دي او وروسته بيا معاصرو آثارو ته هم ور داخل سوي دي.

خو د معاصري تاريخ ليکني ميتودونه پر نقد او ارزوني ولاړ دي او مؤرخ بايد خپلو ټولو مأخذونو، مدارکو، کتبي اسنادو او نورو خورو ورو پاڼو ته د نقد او کره کتني په سترګه وګوري او کره او کوټه سره بېل کړي. د اوسني زماني پلټونکی مؤرخ دې ته اړ دئ چي د خپلو ټولو خبرو او ادعاوو اسناد وښيي.

نو د پښتنو او زموږ د سيمي د نورو اولسونو د پخواني اجتماعي ژوند په باره کي د واقعي او حقيقي اطلاعاتو د تر لاسه کولو له پاره يو ډېر اساسي او حتی ضروري شرط، د علمي اجتماعي مطالعاتو د اصولو په اساس د پخوانيو تاريخونو او تأليفونو جدي او دقيقه کره کتنه ده. په دغسي کره کتنه کي بايد دغه آثار په کاملاً آفاقي ډول چاڼ سي او کومي برخي چي ئې له حقايقو او واقعيتونو سره اړخ نه لګوي پر هغو ټولو د بطلان خط کش سي او نور د اجتماعي او تاريخي مطالعاتو د آثارو مخونه په تور نه سي.

اخځونه:


١. د پښتنو ادبياتو تاريخ (لومړی ټوک)، پوهاند عبدالحی حبيبي، درېيم چاپ، کابل، ۱۳۵۴.
٢. پښتانه، دکتور حبيب الله تږی، پېښور، ۱۹۹۹.
٣. د دارمستتر پښتو څېړني، جېمس دارمستتر، پښتو کوونکي: عبدالحی حبيبي او عبدالرؤف بېنوا، کابل، ۱۳۲۶لمريز.
۴. پښتانه (پټانز)، سر اولف کيرو، پښتو ژباړه: الحاج شېرمحمد کريمی، پېښور، ۱۹۹۹.
۵. اسرائيل په فلسطين کي، نثار احمد صمد، (ناچاپه، ۱۹۸۵).
٦. د پښتنو تاريخ (لومړی ټوک)، قاضي عطاالله خان، کابل، ۱۳۵۶ لمريز.


***

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان



**د ادبیاتو نوبل جایزې ته لنډه کتنه:**

نوبل په ۱۸۹۵م کال په خپل وصیت کې د پنځو جایزو د ورکړې یادونه وکړه. له دې جایزو څخه یوه هم باید د ادبیاتو په ډګر کې ورکړل سوې وای. د هغه له وصیت سره سم جایزه ګټونکی باید د سویډني اکاډمۍ (سویډش اکاډمي) له خوا انتخاب سوی وای.

د سویډني اکاډمۍ دوو غړو د نوبل د دې میراث پر پاللو سخت انتقاد وکړ. دوی اندېښنه لرله، چې په دې کار سره به له اکاډمۍ څخه خپل کار پاته وي او د (نړیوال) ادب د پرېکړو محکمه به څني جوړه وي. د دې تر څنګ هغو دې ټکي ته هم اشاره وکړه، چې د اکاډمۍ مالي توان هم د دې مسئولیت د پاللو اجازه نه ورکوي، خو د اکاډمۍ عمومي سکرتر کارل ډېوډ ایف ورسن (Carl David F. Wirsen) په جواب کې ورته وویل، چې د دې مسئولیت له منلو څخه انکار مناسب کار نه دئ، ځکه په دې ډول به موږ د ټولي نړۍ د نامتو ادیبانو د هنر د یادوني یوه نادره موقعه له لاسه ورکړې وي. همداسي هغه په دې هم ښه پوهېدی، چې د دې مسئولیت له منلو سره به اکاډمي په نړیوال ادب کې یو خاص مقام پیدا کړي، په داسي حال کې چې د دې مسئولیت د نه منلو له امله به اکاډمۍ ته د ملامتۍ ګوتي ونیول سي. سربېره پر دې دا مسئولیت د اکاډمۍ له موخو او اهدافو څخه هم ډېر جلا نه دئ. د جایزې د پرېکړې له پاره

به د ټولي نړۍ ادب اکاډمۍ ته راوړل کېږي، په داسي حال کي چي په بل صورت کي به اکاډمي یوازي تر ملي ادب پوري محدوده پاته وي. د سکرټر دا استدلال ډېر مؤثر تمام سو، ځکه په دې ډول نه یوازي د نوبل ارمان پر ځای سو، بلکي نوموړي سکرټر او د هغه ملګرو ته د ثقافتي سیاست د امکاناتو څخه د ګټي اخیستني یوه داسي موقع هم په لاس ورغله، چي دوی ئې تمه نه لرله.

د نوبل له وصیت سره سم د جایزې له پاره ټاکل سوي معیارونه په اکاډمۍ کي موجود ول. د وصیت له مخي دغه جایزه باید هغه ادیب ته ورکړل سوې وای، چي د انسانیت د یوې اعظیمي ګټي پر مخښونکی وای او پر یو مثالي لوري روان وای. دغه دواړې یادوني له عملي پلوه مبهمي دي، په ځانګړې ډول د مثالي لوري د تګ پر ماده ډېر اوږده بحثونه سوي دي، ځکه موږ تر اوسه سم نه پوهېږو چي د نوبل په نزد مثالي لوری یا ایډیال څه وو؟ په اصل کي د نوبل د جایزې تېر سل کلن تاریخ د همدې دوو ناڅرګندو مادو د تعبیر له پاره هڅي بللای سو، ځکه څوک په مازي یو سر سري نظر هم دا درکولای سي، چي اکاډمي تر دې دمه په پرلپسې ډول د(د پورتنیو دوو مادو) د تفهیم په هڅه کي پاته سوې ده او په دې توګه ئې پر یو مخ د فلجېدو مخه نیولې ده. د اکاډمۍ ډېره تکیه پر هغو کلنیو راپورونو وي، چي د کمیسون له خوا وړاندي کېږي. د اکاډمۍ د غړو تر منځ تبادله کېدونکي نظریات هم عقل ځورونکي وي. دا لا بله چي (د اکاډمۍ) په تګلاره کي راغلي

دي، چي تر پنځوسو کلونو پوري به ټول هغه اسناد پټ ساتل کېږي، چي پر اساس ئې جایزه ورکړل سوې وي.

د ادبیاتو د نوبل جایزې لومړی پړاو له ۱۹۰۱م څخه تر ۱۹۱۲م کلونه په بر کي نیسي. پر دې پړاو د اکاډمۍ د سیکرټر کارل ډیوډ ایف ورسن (د نظر) نخښني ښکاري. په دې پړاو کي د نوبل د وصیت یاد سوی (مثالي لوری) یو لوړ او قوي ایډیال وبلل سو. د همدې معیار پر بنسټ بائیورنسن (Bjornson)، کپلنګ (Kipling) او پال هیس ( Paul Hesse) ته جایزه ورکړه سوه او لیو ټولستوي (Leo- Tolstoy)، هنریک ابسن ( Henrik Ibsen) او ایمېل زولا (Emile Zola) ته ور نه کړل سوه. دلته دا یادونه کېدای سي، چي کمیسون په دې وخت کي هغه ارتجاعي ایډیال د نوبل له وصیت سره سم ګڼی، چي په هغه کي کلیسا، ریاست او خاندان سپېڅلي اداري ګڼل کېږي. د جمالیاتو په برخه کي هم کمیسون د ګویټه او هیګل (د نظرونو) تر اغېز لاندي وو، ځکه د نونسمي پېړۍ په منځ کي ایف ټي فشر (F.T. Fischer) د هغوی اصولو ته قانوني بڼه ورکړې وه. دا معیارونه له مخکي څخه په اکاډمۍ کي موجود ول او هغوی د انقلابي سکینډې نیویایي لیکوالو پر ضد د خپلي مبارزې له پاره ګټه ورڅخه اخیسته. ورسن په دې ډول د نوبل د پورتنۍ یادوني څخه د خپل سیمیز پروګرام په نړیوال ادب کي د معرفي کولو له پاره ګټه واخیسته. د نوبل د وصیت دغه اطلاق د هغه له شخصي ارزښتونو سره سمون نه لري. دا یقیني خبره

ده، چې د ورسن غوندي به د نوبل هم د ایمېل زولا غوندي لیکوال خوښ نه وو، خو دا به هم نه هېروو، چې هغه د کلیسا د اجاره دارۍ هم خورا سخت مخالف وو.

د ادبیاتو د نوبل جایزې دوهم پړاو د لومړۍ نړیوالې جګړې له عصر سره اړه لري. دې (عصر) ته د بې طرفه ادبي ستراتیژۍ نوم ورکولای سو. د سویډني اکاډمۍ د نوبل د کمیسون نوی سیکرتر له ورسن څخه بېل سړی وو. (په دې وخت کې) کمیسون په جګړه کې ښکېل ستر ځواکونه صرف نظر وګرځول او پر ځای ئې کوچنیو ملتونو ته د موقع د ورکولو پرېکړه وکړه. ښایي همدا وجه ده، چې په دې عصر کې د جایزو د وړونکو په لیست کې د سکینډې نیویا استازیتوب یو څه ډېر دئ. د سویډن هیدنستام (Heidnstam)، یلعروپ (Gjellerup) او پر پونتوپېډان (Pontoppidan) سربېره، هامسن (Hamsun) او په شریکه ورکول سوي، ځیني جایزې د همدې تمایل نتیجه ده.

د نوبل د جایزو دریم پړاو د شلمي پېړۍ تر دوهمي لسیزي پوري محدود دئ. په دې وخت کي یو ځل بیا د ورسن د مهال د کلاسیکیت هجوم تر سترګو کېږي، ځکه د همدې معیار ملاتړې اکاډمي د تهوماس مان (Thomas Mann) د هغه اثر (Buddenbrooks) ستاینه کولای سي، چې د تولستوي کلاسیک ریالیزم ته نژدې سوی دئ، خو د همدې لیکوال د جادویي غر (Magic Mountain) یادونه بیا نه کېږي. البته اکاډمي کرار، کرار د مثالي لوري په اړه د خپل دې تعریف د پرېښوولو په هڅه کي وه. په ۱۹۲۱م کي د (نوبل) د وصیت دغه جز له سره تعبیر سو، دا ئې پراخ دله انسانیت وباله او په دې ډول د اناطول فرانس او جارج برنارډشا له پاره د جایزې دروازه خلاصه سوه، په داسي حال کي چې که څیري تر دې په مخکیني معیار تلل سوي وای، نو دوی ته د دې جایزې ورکړه له قیاسه لیري ښکارېده.

په دریمه لسیزه کي اکاډمۍ د وصیت د یاد سوي لومړي جز (د انسانیت عظیمي ګټي) ته د نوي تعبیر د ورکولو هڅه وکړه او په دې ډول ئې د یوه اثر د لوستونکو دایره او انساني ماډل برابر وګڼل. کمیسون نړیواله ګټه په نظر کي ونیوه او پر داسي آثارو ئې غور وکړ، چې لږ و ډېر تر ټولي نړۍ رسېدلي ول. له سنکلیر لیوس (Sinclair Lewis) او پرل ایس بک پوري (ورکړل سوي) جایزې د همدې نوي تعبیر په مرسته بلل کېږي او همدا معیار پال ویلري (Paul Valery) او پال کلاډ (Paul Claude) غوندي شاعرانو ته د جایزې د نه ورکړي لامل څرګندېږي.

د دوهمي نړیوالي جګړې له امله د رامنځ ته سوي وقفې او په ځانګړي ډول د (اکاډمۍ) د نوي سیکرتر اینډرز آسټرلنګ (Anders Osterling) د تحرک په خاطر، اکاډمۍ له جګړې وروسته د اولسي ذوق له لارښوونې لاس واخیست او د ادب د ډګر هغو خلکو ته ئې پاملرنه وکړه، چې متقدمین (Pioneers) بلل کېدای سي. اکاډمي د ساینس غوندي په ادبیاتو کي هم هغو کسانو ته توجه وکړه، چې تمایل جوړونکي ول. له یوه

خه دا هم د انسانيت "عظيم خدمت" بلل
بداى سي. د دې نوي تعبير له مخي تر ټولو
ر کانديد هغه کس وبلل سو، چي نړيوال ادب
ې صرف نظر ګرځولى واى او په ژبه کي ئې
نوي امکانات (نوښتونه) رامنځ ته کړي واى.

په دې پړاو کي هم د ايډيال لفظ په خورا پراخو معناوو واخيستل سو. د جايزه وړونکو نوى ليست له هرمان هيس ( Hermann Hesse ) څخه پيل سو. په دريمه لسيزه کي دغه ليکوال له دې امله د دې جايزې له پاره نامناسب وبلل سو، چي کرکټرونه ئې د اخلاقي انارشۍ قرباني او په نوي چوکاټ کي د اچولو له وړتيا څخه بې برخي ول. وروسته هڅه وسوه، چي د نړۍ په اړه د سيموېل بيکټ (Samuel Beckette) د ويرجن تصور او د نوبل د ايډيال تر مينځ ورته والى پيدا کړي. د بحث پر مهال کارل ريګنر ګيرو ( Carl-Ragner Gierow) يادونه وکړه، چي د انساني اجتماعي شخصيت په عمق کي يوازي شاعري او وير زغمنه خپلي معجزې ښکاره کولاى سي. داسي و انګېرل سوه، چي د بيکټ په نهيلزم (پسيمزم) کي هم د انساني وقعت ژوند بخښونکى احساس په خورا څواکمن ډول ليدل کېږي. د ژوند په اړه د رويې د دې تعبير معيار ډېر څرګند نه وو. په دې اړه يو مثال د ايزرا پاونډ ( Ezra Pound) وړاندي کېږي. دې امريکايي شاعر هم د شاعرۍ په ډګر کي د نوو تمايلاتو د مؤسس ادعا لرله او د نوموړي دا خبره د ډېرو خلکو له پاره د منلو وړ هم وه، خو هغه له دې امله رد کړل سو، چي هغه د ايټاليا په يوه راډيو کي د يهودانو د قتل عام په اړه مثبته رايه ښکاره کړې وه. د کميسون يوه غړي ډيګ هيمر شولډ (Dag Hammerskjold) د کميسون د بحث د رانغاړلو پر مهال وويل، چي دا يو معياري انساني چلند نه دئ او لږ تر لږه د دې جايزې مستحق خو بېخي نه دئ، چي د مثاليت ادعا کوي. د ايزرا پاونډ د رد په اړه پرېکړه پر خپل ځاى وه، البته هغه د کميسون په اشاره هڅه کول، چي ايزرا پاونډ د رواني ناروغانو له هغه روغتونه راوباسي، چي د امريکا دولت نوموړى د خيانت له امله د اعدام له سزا څخه د ژغورلو له پاره داخل کړى وو.

ټاکل سوې وه، چي د (نوبل) د وصيت د دې نوي تعبير پيل له ويلرۍ (Valery) څخه سوى واى، خو داچي هغه د ۱۹۴۵م کال په دوبي کي له نړۍ سترګي پټي کړې، نو همدا لامل دئ، چي موږ په دې لړ کي له ۱۹۴۶م څخه تر ۱۹۵۰م پوري د هيس (Hesse)، آندرې ژيد (Andre Gide)، ټي ايس ايليټ (T.S.Eliot) او وليم فاکنر ( William Faulkner) له نومونو سره مخامخ کېږو. آسټرلنګ (د سويډني اکاډمۍ سکرتر) هغه غونډي ته، چي ټي، ايس ايليټ ته د جايزې د ورکړي له پاره جوړه سوې وه، پخپله وينا کي وويل، چي ويسټ لنډ په معاصر ادب کي يو بل نوى تمايل رڼوونکى کار دئ. په دې مورد کي، نوموړي د جيمز جوايس د (Ulysis) يادونه هم وکړه. جيمز جوايس ته د جايزې نه ورکول د دريمي لسيزي تر ټولو لويه بې انصافي بلل کېږي. په ۱۹۴۸م کي ټي ايس

ایلیټ ته د جایزې په ورکړه سره، (کمیسون) د
پورتنی بې انصافۍ د جبیره کولو هڅه وکړه.
پر نوښت دغه هجوم تر اوسنیو کلونو پوري
روان وو. په ۱۹۶۰م او ۱۹۶۹م کي سینټ جان
پرسي (Saint- John Perse) او سیمویل
بیکټ (Samuel Beckette) ته ورکړل
سوي جایزې د همدې تمایل غوښتنه وه.
البته څنګه چي د موډرنیزم نړیوال غورځنګ د
تاریخ برخه وګرځېده، نو له دې سره سم
پورتني معیار خپل ارزښت له لاسه ورکړ،
ادبي وړتیا پیکه سوه او پر ځای ئې د ژبو د
ځانګړو سیمو وړتیاوي د ترجیح وړ وبلل
سوې. د ۱۹۸۸م جایزه داسي شخص ته ورکړل
سوه، چي د غربیانو په نظر هغه تر څه ناڅه حده
د فلابیر او تهامس مان (Thomas Mann)
روایت ژوندی وساته او هغه ئې استعمال کړ.
همداسي نجیب محفوظ په عربي نړۍ کي د
معاصر ناول خالق بلل کېږي. بله جایزه کمیلو
هوزې تهلا (Camilo Joes cela) ته ورکړل
سوه. دی که څه هم په نړیواله کچه تمایل
جوړونکی بلل کېدای نه سي، خو له جګړې
وروسته د هسپانوي ادب مخکښ دئ. د
ځانګړو ژبو د سیمو (د وړتیاوو) په تناظر کي
که وکتل سي، نو د ۲۰۰۰م کال د نوبل جایزه
ګاو ژن ژیانګ (Gao Xigjang) ته ورکړل
سوې ده. نوموړي دمعاصري چینایي ډرامې
او ناول لاره هواره کړه.

د اوومي لسیزي په اواخرو کي د نوبل
اکاډمۍ په غړو کي د داسي کسانو شمېر په
ډېرېدو سو، چي غوښتل ئې د هغو لیکوالو له
اثارو څخه نړۍ مستفیده کړي، چي مهم خو
مشهور نه ول. دوی داسي فکر کاوه، چي که
دغو لیکوالو ته جایزه ورنه کړل سي، نو ډېر
خلک به ونه کولای سي، چي د دوئ له اثارو
څخه ګټه پورته کړي او بل په دې ډول به د دوی
حق هم ادا سوی وي. دې ته ورته دلایل مخکي
هم وړاندي سوي ول. د دې خبري ښه مثال په
۱۹۱۳م کي رابندر نات ټاګور ته د جایزې
ورکړه وه، خو په اوومه لسیزه کي د یو سنجول
سوي پلان په توګه د دې ګام په عملي کولو
پیل وسو. په دې برخه کي په ۱۹۷۸م کي او تر
دې وروسته، آیزک، بي، سنګر
(Isaac.B.Singer )، اوډیسي ایلیتس
(Oddysseus Elytis)، ایلیاس کنیټي
(Elias Canetti) او جیروسلاف سیفرټ
(Jaroslav Seifert) ته ورکړل سوي جایزې
راځي. په دې معیار کي شاعري ته یو خاص
امتیاز ورکړل سو. د نوبل جایزې په تاریخ کي
بل هیڅ وخت شاعرانو ته په دې شمېر پرلپسې
جایزې نه وې ورکړل سوي، لکه له ۱۹۹۰م څخه
تر ۱۹۹۶م پوري چي ورکړل سوې. په دې اوو
کلونو کي څلور جایزې، اوکټاویاپاز
(Octavia Paz)، ډیرک واکاټ ( Derek
Wolcat)، سیمس هیني ( Seamus
Heaney ) او ویس واوا شمبورسکا
(Wislawa Szymborska) ته ورکړل
سوې. د جایزو له ورکولو څخه مخکي دغه
شاعران هیڅ نه پېژندل.

په اتمه لسیزه کي د نوبل جایزې د کمیسون په
پالیسۍ کي یو بل تغیر هم راغلی. د دې تغیر
هدف یو ځل بیا هغه هڅه وه، چي د نوبل د
وصیت تفسیر په پراخه معنا سره واخلي. هغه

په خپل وصیت کې لیکلي ول، چې د جایزې د ورکولو له پاره د لیکوال د انتخاب پر وخت هیڅوک دا فکر مه کوي، چې هغه له سکنډې نیویا څخه دئ، که د نړۍ د کومې بلې برخې څخه. خو د وخت په تېرېدو سره ورو، ورو دا ستونزمن کېدل، چې په ټوله نړۍ کې د خپرېدونکي ادب نظارت وکړل سي، ځکه نو پر کمیسون (د نوبل جایزې له پاره د شخص انتخابونکې کمیسون) دا نیوکه بیخي پر ځای ده، چې کمیسون غواړي خپله توجه یوازي تر اروپايي ادب پوري محدوده کړي. که څه هم په دوهمه لسیزه کې د دې خبرې د عملي کولو نخښې لیدل کېدې، چې کمیسون په خپلو پرېکړو کې د نړیوالتوب تمایل لري، خو د دې فکر د عملي کولو له پاره امکانات نه ترلاسه کېدل. تر درېیمې لسیزې پوري د نړۍ له ډېرو برخو څخه کاندیدان هم نه ول او تر دې مهاله کمیسون د کاندیدانو د پیدا کولو له پاره انتظام هم جوړ کړی نه وو. د بېلګې په ډول په ۱۹۶۲م کې یاسوناري کاواباټا (Yasunari Kawabata) ته د جایزې ور کول د دې خبرې له روښانه کولو سره مرسته کولای سي، چې د دې ډول پرېکړو په لار کې څونده ستونزې پرتې وې. د ډېرو نورو نااروپايي ژبو غوندي د ده د آثارو د مطالعې له پاره هم له څلورو نړیوالو کارپوهانو څخه مرسته وغوښتل سوه. د ۱۹۸۶م او ۱۹۸۸م نوبل جایزې د دې خبرې تظاهر وو، چې کمیسون پر خپله هغه پرېکړه ولاړ دئ، چې له اروپا څخه د باندې مسایلو ته هم نظر ساتي. همدا رنګه د جنوبي افریقا نادین ګارډیمر (Nadine Gardimer)، د جاپان او (Oe) او د سینټ لوسیا ډیرک والکاټ (Derek Walcott) ته ورکړل سوي جایزې هم په همدې ضمن کې راځي. د چینايي ژبې په لیکوالو کې داوژنګ ژیانګ (Dao Xinjiang) لومړنی کس دئ، چې نوبل جایزه ئې ورې ده. په دې برخه کې یو وړاندیز دا هم وو، چې تر ټولو مخکې باید ژبه انتخاب سي او له هغه وروسته د هغې ژبې مهم خو صرف نظر سوي ادیب ته نوبل جایزه ورکړل سي، تر څو د هغه کار معرفي سي. د کمیسون پر پرېکړو انتقاد کوونکي ډېر کله دا خبره هېروي، چې کمېټه هغو سیاسي نتایجو ته هم پام کوي، چې د دوئ د پرېکړو له امله ئې د رامنځ ته کېدو امکان وي. دا سمه خبره ده، چې داسې مهمه نړیواله جایزه به سیاسي اغېزې لري، خو کمیسون مجبوره دئ، چې تر داسې اغېزو لوړ فکر وکړي.

ځیني وختونه هغه بحثونه بېخي غیر متوقع نتایج ورکوي، چې د کمیسون پر معیارونو کیږي. د بېلګې په ډول په ۱۹۸۱م کې کنیټي (Canetti) ته جایزه ورکړل سوه. هغه نسبتاً کم نامتو لیکوال وو، خو په دا بل کال بیا د کمیسون د انتخاب نظر د جادويي ریالیزم پر مؤسس ګبرېل ګارشیا مارکوئیز (Gabriel Garcia Marquez) باندې ونښت. دا جایزه د دې عصر له عمومي تمایل سره سمه نه وه، ځکه چې هغه په نوي عصر کې د تمایلاتو ښنسټ ګر وو. ځیني جایزه وړونکي سره له دې چې تمایل جوړونکي او ارزښتناک ول، خو بیا هم ډېر مشهور نه ول. په دې کسانو کې ولیم فاکنر هم راځي. پاتې په ۷۲ مخ کې

محب الله ترابي/ کندهار پوهنتون

# په کاکړيو غاړو کې د شخصيت ورکولو موضوع

کاکړۍ غاړې د پښتو اولسي سندرو يوه لويه او بډايه خزانه ده، چې د پښتو لنډيو پرته ئې ساری نه ليدل کېږي، کاکړۍ غاړې په يوه لنډ بحر کې ډېر ژور مفاهيم رانغاړي، يعني د مفهوم په لحاظ چې څومره پراخې دي، خو د جوړښت لمن ئې بيا ډېره تنګه ده، يعني کاکړۍ غاړې چې اووه او اته او يا اته اته سېلابه دي، دومره زور پکښې دئ، چې د خلکو په زړونو کې ئې ځالي کړي دي، زياتري غاړې خو دومره خوندوري او په زړه پوري دي، چې په اورېدو ئې د سړي د عمرونو تنده ماتېږي (۳م، ۱۳).

کاکړۍ غاړې که څه هم په کاکړو پښتنو پوري تړل شوي دي، خو د ټولو پښتنو ګډ مال دئ او په جوړولو کې ئې ټولو پښتنو برخه اخيستې ده، نو ويلای شو، چې په يوې سيمې پوري محدودې نه دي. دغه سندرې چې کله د (کاکړۍ، کاکړۍ غاړې، کاکړۍ لنډۍ او کاکړۍ نارو) په نامه يادېږي، په ځان کې ئې نه يوازې د شنه خال، تورو څڼو او سپينې خولې ستاينې خوندي کړي دي، بلکي د استعمار پرضد ئې د ملي مجاهدينو ښه يادونه په خپلو خوږو اهنګونو کې خوندي کړې او زموږ د ملي تاريخ سره په زياتو برخو کې دغه مرسته کولای شي (۲م، ۱۰۳).

د کاکړۍ غاړو جوړښت ته که راشو کاکړۍ غاړې له دوو مسرو څخه رغېدلی يو ووړ فورم دئ، چې د دواړو مسرو سېلابونه ئې برابر خو کله کله توپير پيدا کوي، يعني اته اته سېلابه، اووه اته سېلابه او ډېري کمې پکښې اووه اووه سېلابه ميندل کېږي. پاته دې نه وي هغه غاړې چې مسرۍ ئې اووه او اته سېلابه دي، هم خپل وزم، اهنګ او موسقيت له لاسه نه ورکوي.

راځئ چې د هر ډول ئې يوه يوه نمونه ولولو:

- اته اته سېلابه:

چې دواړه مسرۍ ئې اته اته سېلابه وي:

مازيګر دئ څم به کور ته
سرې پلو که له خولې پورته
(۳م، ۴۳۴)

- اووه اته سېلابه غاړه:

چې يوه مسره ئې اووه او بله ئې اته سېلابه وي:

ستا خولګۍ ډېره خوږه
پره شواروز ومه نشه
(۳م، ۴۳۴)

- اووه اووه سيلابه غاړې:

چي دواړه مسرۍ ئې اووه اووه سيلابه وي:

سترګي چاته توروې
له موړ ولاړې د خيال شپې
(۳م، ۳۹۴)

د بوټو تنۍ تــړم
د شاکار مېلې ته ځم
(۵م، ۹۸)

ګرانو لوستونکو لنډ لنډ به د کاکړيو غاړو ډولونه د هندسي جوړښت سره درته وړاندي کړم او بيا به خپلي اصلي موضوع ته چي شخصيت ورکول دي راوګرځم او په غاړو کي به درته د خپلو نالوستو شاعرانو هنر او مهارت په ګوته کړم.

کاکړۍ غاړي پر څلور ډوله دي:

۱- ازادي غاړي:

هغه غاړي چي د قافيې او رديف له قيد څخه ازادې وي، مګر وزم او موسقيت لري؛ لکه:

زه چي کښېنم ستا تر څنګ
اخلم له ګرډي دنيا خوند
(۳م، ۲۴)

هندسي جوړښت ئې داسي کښلای شو:

________________

________________

۲- هغه غاړي چي يوازي قافيه لري:

په ګندم د زړه زخمونه
ستا د سر راکه تارونه
(۳م، ۲۶)

هندسي جوړښت ئې داسي کښلای شو:

a________________

a________________

۳- هغه غاړي چي يوازي رديف لري:

ازلي قلم مي خوار دئ
سپينه زوند مي په زاوال دئ
(۳م، ۲۷)

هندسي جوړښت ئې داسي کښلای شو:

________________a=

________________b=

۴- هغه غاړي چي قافيه او رديف دواړه لري:

زما د غاړي امېل ورک دئ
ادې شک مي پر نازک دئ
(۳م، ۲۵)

هندسي جوړښت ئې داسي کښلای شو:

________________a=

________________a=

دا چي د دې ليکني موخه په کاکړيو کي شخصيت ورکول ده، شخصيت ورکول د بديعي ښکلاوو له ډلي څخه يو ښکلى او مهم صنعت دئ، چي دا رنګه ئې تعريفولای شو: "کله کله ليکوالان او شاعران هغه ځانګړني او صفتونه چي په انسان پوري خاص دي، ځينو شيانو او حيواناتو ته ورکوي؛ لکه: اسمان، نسيم، سپوږمۍ، اوبو، چينار، د سبا باد، يا غره ته خطاب کول او له هغه سره خبري کول، دې کار ته په ادب کي شخصيت ورکول يا پرسونيفيکاسيون وايي. ښې بېلګي ئې هغه بالکنايه استعارې دي، چي له انسان سره تشبيه پکښي راغلې وي" (۴م، ۱۷۵).

لکه د عبدالرحمن بابا دا لاندي بيت:

هر ساعت زما د غوږ په تاوولو
د فلک لاسونه شنه شوه تر څنګلو

په پورته بيت کي (فلک) ته لاسونه، څنګلي او شين والی چي انساني ځانګړني دي ورکړل شوي دي.

د پیر محمد کاکړ دا لاندي بیت ګورو
چي شمال ئې مخاطب کړی دئ:

ته چي قصد د یار په زلفو کړې شماله
خبر واخله د پرېشانو زړو له حاله

لاندي لنډۍ لولو ، چي پکښي کاڼو او
بوټو ته د ژړا صفت ورکړل شوی دئ او حال
دا چي ژړا انساني ځانګړنه ده:

سبا به کاڼي بوټي ژاړي
چي یو مین له بله اخلي رخصتونه
(۱م، ۲۸)

په کاکړیو غاړو کي شخصیت ورکول:

ژغ په ورو خندا په سپکه
دېوال غوږ لري نازکه

په پورته غاړه کي دېوال د غوږ خاوند
بلل شوی، غوږونه حیوانات هم لري، خو د
خبرو کولو توان نه لري او هم په اصطلاح د
میني او محبت داستانونه پرې نه شي
اورېدای، چي دا کار نو یوازي د انسان
ځانګړنه ده. که پورته غاړه د استعارې له
مخي وګورو نو د (دېوال) له کلمې څخه
موږ د انسان یا د رقیب مانا اخلو، نو (دېوال)
مستعارله او (انسان یا رقیب) چې نه دئ
ذکر شوی، مستعار منه شو، چي د بالکنایې
استعارې ښکلې بېلګه ده؛ خو په دې
استعاره کي مستعار منه د خپلو لوازماتو له
مخي پېژندل کېږي؛ نو هغه پکښي د غوږ
لرل دي، چي د انسان له متعلقاتو څخه دئ
او په عین حال کي قرینه هم ده. دا نو د هغي
خبرې اثبات هم دئ، چي ومو ویل د
شخصیت ورکولو ښې بېلګې بالکنایه
استعارې دي.

زه خوشحاله وم تر دېره
ستا چارګل رالی دېرې له
(۳م، ۳۲۰)

په پورته غاړه کي چارګل ته د راتللو
چي د (رالی) کلمه ئې ورته کارولې صفت
ورکړل شوی دئ، حال دا چي دېرو او
مجلسونو ته تګ انساني ځانګړنه ده.

ښایسته دئ ولنګ په بوره
هر کمیس راځي اوبو له
(۳م، ۳۸۵)

په پورته غاړه کي کمیس ته د
ګرځېدو او راتګ ځانګړنه ورکړل شوې
ده، حال دا چي دا کار انساني صفت دي، د
ګرځېدا صفت په حیواناتو کي هم شته، خو
هغه چي بیا ګودر پرې ښایسته کېږي. لکه
په پورته غاړه کي نو بیا ئې انساني ځانګړنه
بللای شو.

سپوږمۍ یوسه سلامونه
د پردېس راوړه حالونه
(۳م، ۳۴۳)

سپوږمۍ ژر کوه واهي
ګل په ځوزانو کي راځي
(۳م، ۳۶۷)

په پورته دواړو غاړو کي سپوږمۍ مخاطبه
ګرځول شوېده، په لومړۍ کي امر پرې
شوی، چي پر پردېس جانان مي سلامونه
وایه او احوال ئې راته راوړه، چي دا کار خو
طبیعي دئ، چي د انسان کار دئ، ځکه چي
د سلامونو وړل راوړل او د احوالو وړل راوړل
د ریبار کار دئ، مګر په دغه غاړه کي
سپوږمۍ ته ورکړل شوی. په دویمه غاړه
کي هم پر سپوږمۍ امر شوی، چي ژر
روښایي کوه، ترڅو زما ګل چي جانان مراد
دئ، له خطره وژغورل شي. همدارنګه دا
لاندي غاړه وګورئ، چي ځمکه پکښې
مخاطبه ګرځول شوې ده.

مځکي وسپړه غوټۍ
زه په ارمان در ورم نرۍ

(۳م، ۴۴۶)

تاسي په خپله د خپلو نالوستو شاعرانو مهارت وکاته، زه نور د خپلو خبرو لمن رانغاړم او خپلې ليکنې ته د ستر خوشال بابا په هغه بيت د پای ټکی ږدم، چې پکښې (محبت) ته د بدرګې په ځانګړنه شخصيت ورکوي.

بدرګه که محبت راسره نه وای
يک تنها به پر خونخوارو لارو تلل څوک

اخځليکونه:


۱. پکتين، پوهيالی يارمحمد، په ولسي سندرو کې پرسونيفيکاسيون، سبا سترګه مجله، لومړی کال، درېيمه ګڼه (کب)، پرله پسې ۳ ګڼه.
۲. دوست، څېړنوال دوست محمد، ۱۳۸۵ ل، ل، د پښتو اولسي ادب لارې، دويم چاپ، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.
۳. ژړک، محمد صادق، کاکړۍ غاړې، پښتو ادبي غورځنګ، کوټه.
۴. همکار، پوهنيار محمد ابراهيم، ۱۳۸۶ ل، ل، د بديع فن او پښتو شاعري، رڼا مرکز کلتوري ځانګه، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.
۵. يون، پوهيالی محمد اسماعيل، ۱۳۷۷ ل، ل، د پښتو شعر هندسي جوړښت، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.


***

د ۶۸ مخ پاتې:

سره له دې چې دی د شلمې پېړۍ له سترو تجربيت پسندو ناول ليکونکو څخه وو، خو بيا هم هغه تر ۱۹۵۰م پورې خورا لږ شهرت درلود. دا رنګه جايزې له هغو ليکوالو سره تر يوې محدودې کړۍ دباندې په معرفي کولو کې مرسته کوي، چې ابتکاري طبعه لري. په ۱۹۹۷م کې داريو فو (Dario Fo) ته هم د دوو لاملونو پر بنسټ جايزه ورکړل سوه. يو داچې هغه پر داسې ژانر کار وکړ، چې صرف نظر ګرځول کېدی او بل هغه په همدې ډګر کې نوښت ښکاره کاوه.

په اتمه او نهمه لسيزه کې هم څه کېدله، چې د نوبل د وصيت د مثالي لوري تعبير تر وسه، وسه په پراخه معنا وسي. د همدې هڅې په نتيجه کې کميسون دا ومنله، چې سنجيده ادب هغه دئ، چې يو انسان نه يوازې له خپل حالت څخه اګا کړي، بلکې د هغه ژوند هم ور ښه کړي. کله چې کميلو هوزي تلا (Camilo Jose Cela ) نوبل جايزې ته د کانديد په توګه ومنل سو، نو دغه معيار يو ځل بيا تر سوال لاندې راغلی، ځکه نوموړي نړۍ ته خورا له توري هيندارې څخه کتل. په دې ځای کې کميسون يو وار بيا له داسې ستونزې سره مخ وو، لکه بيکټ ته د جايزې ورکولو پر مهال چې ور پېښه وه. دلته هم کميسون هغسې پرېکړه وکړه. دا جايزه ئې پر هغه غني نثر ورکړه، چې خطا ته د انسان د مېلان له چيلنجه ډک تصوير ئې وړاندې کاوه. کميسون په دې نظر وو، چې په دې کې هم له انسان سره خواخوږي او نور مثبت احساسات موجود دي، صرف دونه ده، چې ده په ډېر ساده ډول وړاندې کړي دي او د هيڅ د طرفدارۍ امکان ئې پکښې پرې ايښی نه دئ. که د دې پرېکړې له هنداري څخه ورته وکتل سي، نو داسې ښکاري، چې د ادب په ډګر کې ورکول کېدونکې جايزه د ادبي صلاحيتونو جايزه ګرځي.

نور بيا ...

ليکوال: څېړندوی رفيع الله نيازي/ کابل

# لغمان د تاريخ په هنداره کي

لغمان د تاريخ په اوږدو کي کله د يوې خپلواکي سيمي په توګه، چي نوري سيمي ورپوري تړلي وي، کله په يوې کوچنۍ درې پوري منحصر شوی، کله په کاپيسا، کابل، ګندهارا او ننګرهار پوري اړوند شوی او ځينو ليکوالو خو د سند او ملتان د پاچاهي کورنيو په قلمرو کي هم شامل ګڼلی دئ. په دې سيمه کي د دوو سترو اريايي قبيلو يعني "پکته او الينا"، د کوشاني مدنيت د شتون او پر دې سيمه د وربښمو لاري د تېرېدو له امله لغمان ځانګړی تاريخ لري، د هند نيمي وچي ته د يرغلګرو او همدا راز د هند نورو سيمو ته د پښتني قبايلو د لېږد د يوه معبر حيثيت ئې هم درلود. په دې ليکنه کي يادو ځانګړنو ته په پام سره د لغمان تاريخي بهير څېړل شوی دئ.

لغمان د خپل اوسني نوم په لړ و ډېر بدلون د (لامګان، لمګان، لان پو، لنپاک، لامپاکا، رام پاکا، لمپاکا، لمبکا، لمغان، لمقان، لمقانات او د لمغانات) په نومونو ياد شوی دئ. کننګم په خپل اثر "Ancient Geography of India" کي د لغمان د نامه په اړه کاږي: "بطليموس هم په همدغه ځای (د لغمان موقعيت) کي د (لمباتا) په نوم وګړو ته اشاره کوي. له دغه وروستي نوم او د لمغان د اوسني مستعمل نامه د پرتله کولو له امله دا امکان رامنځته کېږي، چي د هغه اصلي بڼه به د سنسکرېټ لمپاکا وي... مسلمانان دا نوم لاميلک Lameck ته رسوي او دوی د هغه د قبر موجوديت په لغمان کي شمېري، چې دا قبر بابر او ابو الفضل کتلی دئ"[1].

خو اروابناد اکاډيميسن عبدالشکور رشاد وايي: "لامک د کلي د ملک او خان معنا لري، دا چي ځيني کسان مهتر لام د حضرت نوح (ع) پلار ګڼي، دا مسئله د تامل وړ ده. زه داسي فکر کوم، چي لام او لامک د پشه يي ژبي د کلي او د کلي د ملک او مشر معناوي لري"[2].

"لام يوه پشه يي کلمه ده، چي اوس هم په دې سيمه په تېره په لغمان کي ډېره شته، لکه: نورلام، مهترلام، کولک لام، اونګه لام، لوګرلام، لمټک، نولام، نجلام، لچه لام، ننګه لام، کل لام او نوري، چي ټول د کلي په معنا استعمالېږي، کله کله دغه لام په رام هم اوښتی دئ؛ لکه: ګلارام، کوټه رام، بسرام، شمرام او نور"[3].

د سرمحقق استاد زلمي هیوادمل د څېړنو پر بنسټ په لیکلو اسنادو کې د لغمان د نامه قدیمي ثبت د "لمکان جتي" په بڼه په هغه کتیبه کې راغلی، چې په ۱۹۶۹ ز کال د لغمان په شله ټک کې له نورو کتیبو سره یو ځای کشف شوې ده. "د لغمان د مهترلام لوېدیځ لور ته په درې میلې کې د شله ټک کلي د غره په څنډه کې درې کتیبې شته، چې یوه یې کښنې په ارامي رسم الخط لیکل شوې او د اشوکا زمانې ته منسوبېږي. همدغلته دوې نورې کتیبې هم شته، د حروفو له شکلونو ئې دا څرګندېږي، چې له "ناګري" خط نه مخکې له لومړي نه تر لسم قرن پورې زمانې ته رسېږي ... دا کتیبې په ۱۳۴۸ هـ ل کال کشف شوې دي. تر اوسه ډېرې څېړل شوې نه دي، خو هغه کتیبه چې په "تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان" نومې اثر کې په ۲۲ شمېره ثبت شوې د هغې په څلورمه لیکه کې د "لمکان جتي" کلمه راغلې، چې جتي په سنسکرېټ کې د مخلص، مرید او دیني مبلغ معنا لري او دا خبرې دا زیادوي، چې "لمکان جتي" کلمه هم زوړ تاریخ لري"[۴].

د ارواښاد پوهاند عبدالحي حبیبي د څېړنو پر بنسټ د دغسې کتیبو لیکل له لومړۍ مېلادي پېړۍ څخه پیل شوي دي. تر دغې کتیبې وروسته په مکتوبو اثارو کې یوناني ځمکپوه بطلیموس د لغمان سیمه د مینورسکي د څېړنو له مخې د "لمپاګو" او د جنرال کننګهم د څېړنو له مخې د "لمباتا" په بڼه ثبت کړې ده. چینایي ګرځندوی هیون سانګ چې په ۶۳۰ ز کال د اګست له نهمې څخه تر پنځلسمې نېټې پورې لغمان سیمې ته راغلی، د دغې سیمې نوم ئې د "لان - پو" په بڼه ثبت کړی دئ ... او ابو ریحان البیروني په "تحقیق ما للهند" او "قانون مسعودي" کې د دغې سیمې نوم د "لنبکا" یا "لنبګا" په بڼه ثبت کړی دئ[۵].

لغمان ته د هیون سانګ د راتګ له نېټې څخه تر اوسه پورې ۱۳۸۳ کلونه تېر شوي، یعني هیون سانګ خپله سفرنامه تقریباً څوارلس سوه کاله مخکې لیکلې ده. عربي او فارسي ځمکپوهانو په خپلو اثارو کې دا سیمه د "لمغان" او "لامغان" په بڼو لیکلې ده. د لغمان په تاریخي جغرافیه کې راغلي، چې په دیارلسمه او څوارلسمه پېړۍ کې د درباري منشیانو د اغېز له امله چې زیاتره ایرانیان ول، د "لمغان" نوم په "لمقان" واوښت او د څوارلسمې پېړۍ تر نیمایي پورې چې کوم اثار په افغانستان کې لیکل شوي یا چاپ شوي دي، په دغو اثارو کې دغه نوم د "لمقان" او "لمقانات" په بڼه راغلی دئ. خو ځینو پښتنو لیکوالو په یو شمېر اثارو کې له هغې ډلې د اخوند روېزه ننګرهاري په "تذکرة لابرار والاشرار" کې دغه نوم د "لغمان" او "لمغان"، په "تاریخ حافظ رحمت خاني" کې د لغمان، د خوشحال خان خټک په اثارو کې د "لغمان" او د افضل خان خټک په تاریخ مرصع کې د "لمغان" په بڼه ثبت شوی، چې بیا وروسته لمغان په لغمان اوښتی او دود شوی دئ.

له میلاد نه درې سوه کاله په مخکې زمانو کې د افغانستان د نورو ختیځو سیمو په ګډون دا سیمه ان د کندهار تر اغېزه او پورې د هند د موریا د کورنۍ د مشهور پاچا اشوکا د واکمنۍ په سیمه کې شامله وه، چې د دې سیمې په "شله ټک" او درونټه کې د اشوکا د زمانې د ډبر لیکونو پیدا کېدل د دې خبرې مهم دلیل ګڼل کېږي. هیون سانګ په خپله سفر

نامه کې د دې سيمې د جلا پاچاهۍ يادونه کړې ده او وايي: "د لان پو د پاچايي شاوخوا اندازه نژدې يو زر لي ده، چې شمالي خوا ته ئې په واورو پټ غرونه او درې دي او په نورو خواوو کې ئې تور غرونه دي ... له څو پېړيو راهيسې د دې هيواد پاچايي کورنۍ له منځه تللې، مشران ئې په خپلو کې د واک د ترلاسه کولو له پاره مخالفتونه کوي، چې په دې وروستيو وختو کې د کاپيسا تابع ګرځېدلي دي"[۶].

د "جغرافيايي يادښتونه" نومې اثر په ۵۴۹ مخ کې راغلي، چې يو لي ۳۵۲ ګزه کېږي، پنځه ليه يو ميل کېږي او ۱۵۰ ليه ۳۰ ميله کېږي، چې د همدغې محاسبې پر بنسټ زر ليه د هيون سانګ د سفرنامې پر مهال يعني نژدې څوارلس سوه کاله پخوا د لغمان جغرافيايي حدود دوه سوه ميله ول.

د دغه مهال : کاپيسا واکمنان کابلشاهان ول، چې د هندوکش له جنوبه تر ټېکسيلا پورې ئې واکمني کوله، او لغمان ان د غزنويانو تر عصره پورې د دغو واکمنانو په قلمرو کې شامل وو او ځينو تاريخپوهانو خو ويلي، چې ان د سبګتګين د سلطنت تر دويم کال پورې د لغمان سيمه د هند د شاهيه او د ملتان د لودي شاهي کورنۍ له لوري اداره کېده.

"د تاريخ په همدغه پېر کې د سلطان پکهل او سلطان بهرام په نومونو دوه ورونه ول، چې د کونړ په ځينو درو کې ئې سيمه ئيزې واکمنۍ درلودې، د سلطان پکهل د واکمنۍ سيمه له لغمانه تر کونړ، باجوړ، سوات او کشمير پورې وه، خو سلطان بهرام لغمان او ننګرهار ونيول او له کابله تر کشمير پورې ئې واکمني کوله"[۷].

په بابر نامه کې راغلي چې: "نينګهار د لمغان له پنځو تومانو څخه يو تومان دئ، خو د هغې دريو تومانو ته "لمغان" وايي، له دغو دريو تومانو څخه يو ئې اليشنګ ... بل تومان ئې الينګار ... بل تومان ئې کونړ او نورګل دي"[۸].

د ظهيرالدين بابر له يادښتونو څخه څرګندېږي، چې پنځه سوه کاله پخوا اوسنی ننګرهار او د کونړ سيمې هم په لمغاناتو کې شاملې وې.

د احمدشاه بابا د واکمنۍ په پېر کې چې د افغانستان تاريخي جوړښت بشپړ شو نو لغمان وروسته په بېلابېلو دورو کې د افغانستان په ختيځ کې د يوه اداري واحد په حيث پېژندل شوی، چې وخت پر وخت ئې اداري سيستم او د قلمرو سيمو بدلون ليدلی دئ.

"مونټ ستورات الفنستون په خپل کتاب د "کابل سلطنت بيان" کې لغمان د افغانستان په اتلسو ولايتونو کې د يوه ولايت په توګه يادوي ... او په سراج التواريخ کې ئې د امير عبدالرحمان خان په زمانه کې د لغمان د يوه حاکم نوم ګل محمد خان ښوولی دئ"[۹].

د امان الله خان په پاچهۍ کې د مشرقي د اعلی حکومت په چوکاټ کې لغمان د يوه درجه اول حکومت حيثيت درلود، چې اليشنګ، الينګار، قرغه يي، مندروړ او عزيز خان کڅ ئې اړوندې سيمې وې. تر هغه مهاله چې په اداري لحاظ لغمان د ولايت حيثيت نه درلود او د ننګرهار يا د مشرقي د نايب الحکومګۍ د لويي ولسوالۍ حيثيت ئې درلود، نو د قرغيو ولسوالۍ، د نورستان ولسوالۍ، د کڅ علاقه داري، د الينګار علاقه داري او د اليشنګ علاقه داري ئې

اداري واحدونه ول. خو "په ۱۳۴۳ هـ ل کال لغمان د ځانګړي ولایت په توګه وپېژندل شو"[۱۰].

د یوه ځانګړي ولایت په توګه د لغمان له پېژندلو سره اړوندو اداري واحدونو ئې هم بدلون وموند، الینګار او ا لیشنګ له علاقه دارۍ څخه د ولسوالۍ درجې ته لوړې شوې، چې تر ۱۳۵۳ هـ ل کال پورې الینګار، الیشنګ، قرغیي او نورستان ولسوالۍ، خو د عزیز خان کڅ علاقه دارۍ ته مربوطې سیمې په قرغیو ولسوالۍ پورې وتړل شوې او پر ځای ئې د الیشنګ ولسوالۍ په چوکاټ کې دولت شاه علاقه داري جوړه شوه. د ډاکټر نجیب الله د واکمنۍ په وروستیو کلونو کې چې د نورستان په نامه ځانګړی ولایت جوړ شو، نو د لغمان نورستان له لغمانه بېل او په نورستان ولایت پورې وتړل شو. د استاد رباني د حکومت په دوران کې د دولت شاه علاقه داري ولسوالي شوه او اوس اوس د ښاغلي حامد کرزي د ولسمشرۍ د دویمې ټاکنیزې دورې په جریان کې په لغمان کې د بادپښ په نامه یوه نوې ولسوالۍ جوړه شوه چې له دې سره اوس لغمان د الینګار، الیشنګ، قرغیي، دولت شاه او بادپښ په نامه پنځه ولسوالۍ لري او له کابل، ننګرهار، کونړ، نورستان، پنجشېر او کاپیسا ولایتونو سره نښتې پولې لري.

یو وخت دا سیمه یعني لغمان د کوشاني مدنیت تر سیورې لاندې د ګندهارا د جغرافیې یوه مهمه سیمه وه. تاریخپوهان د ګندهارا د جغرافیایي موقعیت د پولو په اړه په یوه خوله نه دي، خو اروابناد پوهاند رشاد وایي: "له ماهیېر څخه چې ورکښته سو نو بیا تر ټیکسیلا پورې دا ټوله سیمه ګندهارا ده"[۱۱].

چې پر دې اساس لغمان نه یوازې دا چې پخپله د ګندهارا برخه پاته شوه، بلکې له نورو سیمو سره د ګندهارا نښلوونکې سیمه هم ګڼل کېږي، یعني کوشاني مدنیت پر دې سیمه خپلې اغېزې ښندلې او دې سیمې هم د کوشاني مدنیت په ځلا کې خپل رول لوبولی دئ.

دا سیمه د ورېښمو د مشهورې سوداګریزې لارې له امله چې له چین څخه نیولې تر اریانا، عرب سمندرګي، مدیترانې او جنوب ختیځې اروپا پورې د مېشتو ولسونو، فرهنګونو، کولتورونو او تمدنونو د تګ راتګ لاره وه، نو د یادو سیمو له فرهنګونو، کولتورونو او تمدنونو څخه اغېزمنه شوې او همدار راز د یادو سیمو د ولسونو سوداګریزو کاروانونو په دې سیمه کې د تګ راتګ، شپو تېرولو او د دې سیمې له وګړو سره د راکړې ورکړې له امله ئې د دې ځای فرهنګي، کولتوري او ټولنیز ارزښتونه هم خپل کړي دي، ځکه چې د ورېښمو لارې یوازې سوداګریز اقتصادي ارزښت نه درلوده، بلکې د فرهنګونو د لېږد او د مدنیتونو د تلاقي لاره هم وه. اریایي، هندي - بودایي، ګریکوبودیک، یونانو باختري، زردښتي او وروسته بیا اسلام او د عربي فرهنګ ارزښتونه پر همدې لاره تللي راغلي، چې افغانستان او په ځانګړي ډول د ورېښمو لارې ته څرمه پرتې سیمې ئې د عبور اصلي ځایونه ول.

همدا راز دې سیمې د هند نیمې وچې ته د یرغلګرو د یوه معبر حیثیت درلود، چې د سکندر، بابر او نورو راتګ د دې خبرې غوري

بېلګې ګڼلای شو. له بامیان څخه تر کاپیسا، هډې، تخت بهایي او ټیکسیلا پورې د بودایي راهبانو او زایرینو د تګ راتګ لار هم وه او په ځانګړي ډول په سیمه ییزه کچه د بودایي مثلث یعني بامیان، کاپیسا او هډې تر منځ د تګ راتګ نښلونکې نقطه هم ګڼل کېږي. پر یادو خبرو سربېره د اوسني لغمان په اړوندو سیمو کې ځینې داسې ځایونه او نومونه شته چې تاریخي مخینه ئې د دې سیمې د لرغونوالي څرګندې بېلګې ګڼل کېږي، "لکه د لغمان د درونټې هغه ډبرلیک، چې پکښې د اشوکا دزېږېدنې ځای درونټه ښودل شوی دئ. دغه ډبرلیک په کابل مجله کې له خپرېدو وروسته د لومړي ځل له پاره ناروېژي پروفیسور مارګنسټېرن په اروپا کې لوېدیځو پوهانو ته وپېژانده، دوه تنه پوهان "پرکلند" او "التهم" د هغې د لیکنې په ژباړنه او مطالعه بوخت شول او د وروستي ځل له پاره په ۱۹۴۹ ز کال پروفیسور "هنیګ" "په لغمان کې د اشوکا د ارامي ډبرلیک کشفول" تر عنوان لاندې د هغه پر چاپېریال یوه مقاله خپره کړه"(۱۲).

ښايي اوسنۍ درونټه د اداري وېش له امله د لغمان له لوري تر تونل پورې د لغمان او له تونل نه وراخوا د ننګرهار ولایت اړونده سیمه وګڼل شي، خو هغه سیمه چې د درونټې ډبرلیک پکښې کشف شوی د افغاني او بهرنیو پوهانو په اثارو کې د لغمان په نامه یاده شوې ده. همدا راز په ۱۳۲۹ هـ ل کال د لغمان په الیشنګ دره کې یوه کتیبه کشف شوه، چې امیر حبیب الله خان ئې هم لیدو ته ورغلی وو، مؤرخین دغه کتیبه تر تاریخي دورې وړاندې په قبل تاریخ زمانو پورې اټکلوي. د استاد حبیبي په یادښتونو کې راغلي، چې: "د دې کتیبې په اړه علمي څېړنې نه دي شوي، د لغمان د دې کتیبې او د هزارسم د کتیبې په خطونو کې څه نا څه ورته والی لیدل کېږي، خو د لغمان د کتیبې خطونه لږ مهذب ښکاري، نو له همدې امله اټکل کولای سو، چې د لغمان د کتیبې نقشونه د هزارسم له دورې پنځوس زره کاله دمخه په راوروسته دورې پورې اړه لري، ځکه چې پر تیږو باندې د دغسې نقوشو ایستل د فلز د رواج په دورې پورې اړه پیدا کوي، چې پر دې اساس نژدې پنځه زره کاله مخکنۍ زمانې پورې ئې اټکل کېږي"(۱۳).

د ارواښاد استاد علي احمد کهزاد څېړنې دا په ګوته کوي، چې: "ختیځ پلو ته د سکندر په اویجه کې لغمان یوه مهمه نقطه ده. موسیو فوشه باوري دئ، چې دلته ئې یو ښار د "نیاکایا منسه" په نوم جوړ کړ او هغه ئې د یونانیانو د فتحې او بري ښار په نوم وباله. فرانسوي ختیځ پېژندونکي د دې ښار موقعیت د "مندراوړ" او د لغمان د چارباغ تر منځ "قرغیو" ته نژدې سیمه راښیي او وایي، چې دلته سکندر د یونانیانو د بري په مناسبت رب النوع ته ډېرې قربانۍ وړاندې کړې"(۱۴).

د همدغې تاریخي ودانۍ په اړه ویل شوي، چې سکندر او یوناني عسکر له کاپیسا نه د نجراو، تګاو، لغمان، کونړ، اسمار، سوات او بونیر پر لار د غرونو په لمنو او تنګو درو کې د تېرېدو له امله له ډېرو سختو ستونزو سره مخامخ شول. د دغو غرنیو سیمو اوسېدونکو خپل کلي او کورونه پرېښودل او د غرونو سرونو ته وختل، له هغه ځایه به ئې یونانیان په ډبرو او پرښو ویشتل او په ناوونو کې به ئې را ایسار کړل، چې د دغه ډول جګړه ییزو تکتیکونو له امله پر سرتېرو سربېره

يوناني جنرالان هم تېپيان شول، په ځينو ځايونو کي خو جګړې دومره سختي وې، چي نژدې وو سکندر پکښې خپل ژوند له لاسه ورکړي، نو له همدغه دول سختې جګړې څخه د خلاصون او خپل رب النوع ته د شکر ادا کولو پر پار ئې دغه کلا جوړه کړه.

د لغمان په دولت شاه ولسوالۍ کي د "تيمور کلا" په نامه يوه کلا شته، چي امير تيمور د دې سيمې د هغه مهال له مېشتو وګړو سره له جګړې کولو وروسته جوړه کړې ده او پر دې سربېره د لغمان په بېلابېلو سيمو کي د بودايانو له لوري جوړي شوي کلاګاني، د مهتر لام او نور لام صاحبانو زيارتونه، د مهتر لام صاحب زيارت ته څرمه تاريخي ابدات، د اليشنګ کلا، د عقل تمامي کلا، د سراج کلا، د تيرګړيو په سيمه کي د هندوانو شمشان او عبادتځايونه او ځيني نور ډېر ليکونه د دې سيمې د لرغونتوب نښې نښانې دي. د لغمان د بادپښ د څلو په اړه ويل کېږي، چي دا څلي د چکړي او د ده سبز د څلو په څېر د بودايي زايرينو د تګ راتګ په مسير کي د لاري معلومولو د نښو له پاره د دې سيمي په بودايي عصر کي جوړ شوي، خو استاد رشاد وايي، چي: "له بادپښه تر مهتر لام پوري د لاري غاړو ته زاړه څلي ولاړ دي، اولس وايي چي دا د سلطان محمود په زمانه کي جوړ سوي دي"[۱۵].

د لغمان د ځينو سيمو نومونه هم ډېره تاريخي مخينه لري، چي ډېر پخوا د هيوان سانګ په "سي. يو. کي"، د ظهيرالدين محمد بابر په بابر نامه، د البيروني په تحقيق ماللهند او ځينو نورو اثارو کي ئې نومونه راغلي، چي له هغې ډلي پخپله د لغمان نوم، الينګار، اليشنګ، ساو، مندروړ، چارباغ، بادپښ، ګمبېرۍ او ځيني نور نومونه يادولي شو". د ګمبير کلمه تقريباً زر کاله مخکي البته په لږ تغير د علامه البيروني په کتاب تحقيق ماللهند کي راغلې ده، نو له دې څخه معلومېږي چي دا نومونه ډېر زاړه نومونه دي"[۱۶].

"همدا راز د ساو کلمې په اړه د البيروني د کتاب الهند د اردو ژباړي په ۳۴۷ مخ کي راغلي، چي د کابل رود له مرستيالانو څخه يو د ساو رود دئ، چي د لغمان په ښار کي تېرېږي او د رونتې ته نژدې په کابل رود ګډېږي"[۱۷].

دا د خوښۍ ځای دئ، چي د البيروني په اثر کي د لغمان د الينګار درې، د ساو سيمي د نوم يادونه شوې، خو د الينګار درې د سيند په اړه راغلي معلومات ئې سم نه دي، ځکه ساو د الينګار په يوه داسي غرنۍ سيمه کي پروت دئ، چي شمال ته ئې د نور لام صاحب دره، جنوب ته ئې کلمان دره، شرق ته ئې شموش يا شکموش او د دره نور ويګل سيمه او غرب لور ته ئې د سنګره په نامه سيمه پرته ده. ساو دره د شموش له سيمي يو کوچنی رود لري، چي له ساو، سنګر، مياخېلو څخه راتېرېږي او په غونډۍ سيمه کي د الينګار له سيند سره ګډېږي، په داسي حال کي چي "د الينګار سيند د ختيځ هندوکش د جنوب د ۴۰۰۰ متره په ارتفاع له پوشال غاښي څخه چي نورستان او منجان سره نښلوي، د چمار غاښي او د مرسمر د لوړي څوکي له ختيځ خوړ څخه سرچينه اخيستي ده ... له سرچينې څخه تر تپاک کلي پوري د نورستان په خاوره کي بهيږي بيا د الينګار هواره ځمکه خړوبوي ... پچګۍ ته نژدې ځان قرغه يي سيمې ته رسوي او ... د درې نيمو کيلو مترو په واټن د

ننګرهار د کانال د اوبو د کاسې لوېديځ ته له کابل سيند سره يو ځای کېږي"[١٨].

همدا اراز: "د الينګار د ... کليمې لومړی جز (الينا) د لغمان په شمال کې د يوې قبيلې نوم دئ، دوهم جز ئې چې ګار يا ګر دئ د ځای او محل مفهوم لري"[١٩].

خو: "د الي کلمې معنا په زړو ژبو کې شنه ده، په الينګار او اليشنګ کې د الي برخه ښايي چې د شنې معنا ولري او په الينګار کې د ګار کلمه ښايي د ګر په معنا وي، الينګار يعني شين غر"[٢٠].

خو په ځينو څېړنو کې الينګار او اليشنګ په دې سيمه کې د اريايانو الينا قبيلې ته منسوب شوي نومونه دي، چې د ګار او شنګ وروستاړي ورسره وروسته يو ځای شوي او د الي يا الينا مختاړي ئې تر اوسه پوري په دغو نومونو کې پخپله اصلي بڼه پاته دي. په تاريخي لحاظ له بلخ څخه د اريايي قبيلو هجرتونو، دې سيمې ته د نورو يرغلګرو راتګ، د هغوی په وړاندې جنګ جګړو او د بېلابېلو واکمنيو له امله د دې سيمې د جغرافيايي پولو تر څنګ د دې ځای پخواني مېشت وګړي هم له خپلو ځايونو لږوډېر کوچېدلي او نوي وګړي او پرګنې هم په دې سيمه کې ابادي شوي دي، خو د وګړو په برخه کې د دې سيمې اوسنی واقعيت دا دئ، چې د نفوسو له مخې اوس په لغمان کې پښتانه په لومړۍ، پشه يان دوهمه او دېګان درېيمه درجه دي، خو ګوجر، نورستانيان او ځيني نور لږکي هم پکښې استوګن دي.

له پورتنيو تاريخي يادښتونو او لاسوندونو څخه دا پايله تر لاسه کوو، چې لغمان د تاريخ په اوږدو کې په جغرافيايي لحاظ ډېر بدلونونه ليدلي دي، کله ئې خپلې خپلواکې پاچاهۍ او واکمنۍ درلودې او کله په خپل ګاونډ او سيمه ييزه کچه د نورو واکمنيو او جغرافيو برخه ګرځېدلی دئ. بل دا چې لغمان نه يواځې د ختيځ بلکې د ټول افغانستان په کچه يوه لرغونې تاريخي سيمه ده، د بېلابېلو تاريخونو، مدنيتونو، واکمنيو خاوند او له چين څخه تر اريانا، عرب سمندرګي، مديترانې او جنوب ختيځې اروپا پوري له ميشتو وګړو سره ئې د ورېښمو لاري له امله فرهنګي، کولتوري، ټولنيزه او اقتصادي راکړه ورکړه درلوده او د هند نيمې وچې ته د يرغلګرو او پښتني قبيلو د لېږد د يوه معبر حيثيت ئې هم درلود.

د دې سيمې معاصر تاريخ هم د افغانستان په کچه ځلېدلی، د افغانستان په معاصر تاريخ کې د ژوندانه په هره برخه کې روښانه او ځانګړی ځای لري، خو فرهنګي او علمي پلوشو ئې دې سيمې ته ځانګړې ښکلا او ځلا ورکړې ده.

اخځونه:


١. هيوادمل، زلمی : د لغمان تاريخي جغرافيه، د اريک د ګرځنده کتابتونونو اداره، الازهر خپرندويه موسسه، پېښور، ١٣٨٣ هـ ل،١١ مخ.

٢. رشاد، عبدالشکور: د سيمو تاريخي جغرافيه، د صديق الله بدر په زيار، ميوند کلتوري ټولنه – کندهار، ٢١٥، ١٣٨٤مخ.

٣. کلمانی، محمد زمان: پشه يي افغانان، د بيهقي کتاب خپرولو موسسه، ازادی مطبعه، ١٣٨٩ هـ ل، ١٤٩مخ.

٤. حبيبي، عبدالحی: تاريخ خط ونوشته های کهن افغانستان،

انجمن تاریخ و ادب افغانستان اکادیمي، مطبعه دولتي، کابل، ۱۳۵۰هل، ۶۱-۶۲مخونه.
۵. د لغمان تاریخي جغرافیه، ۱۳-۱۴ مخونه.
۶. پورتنی اثر، ۱۹مخ.
۷. حبیبي، عبدالحی: تاریخ مختصر افغانستان، دویم ټوک، انجمن تاریخ، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۴۹ هل، ۲۲-۲۳مخونه.
۸. ظهیرالدین محمد بابر شاه: بابر نامه، ژباړه: شفیقه یارقین، انتشارات انستیتوت دیپلوماسي و مرکز مطالعات استراتیژیک وزارت خارجه، مطبعه صنعتي اعتصام، کابل، ۱۳۸۸ هـ ل، ۴۴-۴۵مخونه.
۹. د لغمان تاریخي جغرافیه، ۴۶ - ۴۷مخونه.
۱۰. ارشاد، اورنګزېب: افغانستان پېژندنه، دانش خپرندویه ټولنه - پېښور، ۱۳۸۴ ل، ۱۲۵مخ.
۱۱. د سیمو تاریخي جغرافیه، ۲۳۲مخ.
۱۲. کهزاد، علي احمد: افغانستان د تاریخ په رڼا کي، ژباړن: اورنګزېب ارشاد، دانش کتابتون - ډهګي نعلبندي، ۱۳۷۹هل ۱۲۱مخ.
۱۳. تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان، ۵-۴مخونه.
۱۴. افغانستان د تاریخ په رڼا کي، ۷۲ مخ.
۱۵. رشاد، پوهاند عبدالشکور: جغرافیایي یاداښتونه، د معصوم هوتک په زیار، علامه رشاد اکاډیمي-کندهار، ۱۳۸۹هل، ۳۸ مخ.
۱۶. د سیمو تاریخي جغرافیه، ۲۱۴مخ.
۱۷. جغرافیایي یاداښتونه، ۲۵۵مخ.
۱۸. اریانادایره المعارف (دویم دور)، د افغانستان د علوم واکاډمي د دایرة المعارف د مرکز ریاست، نبراسکا مطبعه، کابل، ۱۳۸۶ هـ، ۵۷۶ - ۵۷۷مخونه.
۱۹. پورتنی اثر، ۵۷۶مخ.
۲۰. د سیمو تاریخي جغرافیه، ۲۱۴مخ.
ګرځنده شمېره : ۰۷۰۰۰۵۹۹۵۲
rafiullahniazai@gmail.com

***

د حاجي محمد رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- که ته نن د بدلون پر اوږو باندي سفر و نه کړې سبا به هرو مرو د هغه ترپښو لاندي پروت یې.
- د انسان زړه د پراشوټ په شان دئ، پراشوټ هغه وخت کار کوي چي خلاص سي.
- خنډونه بېروونکي بلاوي دي او یوازي هغه وخت ستا مخته درېږي چي ته د خپل هدف څخه مخ واړوې.
- ناکامي دا نه ده چي ته خپل هدف ته و نه رسېږې بلکي ناکامي هغه ده چي هیڅ هدف و نه لرې.

***

# گرانه ملگریه!

راځه چي د څو لمحو له پاره زه او ته خپلي دنیاگۍ ته ځیر سو ... زما او ستا دنیاگۍ ډېره محدوده او وړه ده.

د بخیل تر تنګ زړه تنگه او د عاصي تر تور زړه توره ده، محدوده او دومره محدوده ده چي آزاده ساه کښل هم پکښې زحمت دئ.

نفس پکښې تنگېږي او ساه پکښې لنډه لنډه کېږي، حتی یو آزاد فکر هم نه پکښې ځایېږي.

هو! زما او ستا دنیاگۍ ډېره محدوده ده!

زما او ستا دنیاگۍ ډېره موحشه ده.

هر طرف ئې هولناک او موحش تور تم احاطه کړي دي د رڼا په ځای کي لا هم رڼا نه لیدله کېږي.

هر زړه پکښې ژوبل او هره آرزو پکښې خاوري کېږي، هر گوټ ته یې د موهوماتو دېوان پراته دي چي څوک د سترگو پرانیتلو ته هم نه پرېږدي ...

د بینایي ځای ړندتیا نیولی. سترگي هیڅ نه وینې لکه چا چي لاسونه پرې نیولي وي ... مهیب – مهیب ږغونه اروېدل کېږي، همداسي په دې توره وحشتناکه تیاره کي پرېوتي یو او له هیبته مو خولې وازي نیولي دي.

هو! زما او ستا دنیاگۍ ډېره موحشه ده.

زما او ستا دنیاگۍ ډېره زړه هم ده.

هیڅ نوی شی پکښې نه لیدل کېږي. دلته هر زلمیتوب زړتیا ده ...

هر پلو ته زاړه هډونه پراته دي، مغزونه ئې هم زاړه دي، زاړه بومان په زړو کنډوالو کي ناست دي، زړې سندري وایي زه او ته هم په ځوانه ځواني پکښې زاړه سوو.

ځکه چي زما او ستا دنیاگۍ ډېره زړه ده!

